د اعلیحضرت عظیم البرکت د څوارلسمې صدۍ مجدد
امام احمد رضا خان قادری افغانی دیو مبارک تصنیف

# تمهیدِ ایمان

پښتو ترجمه

مترجم
خورشید احمد شاهد القادری میخ بند،
ملاکنډ ایجنسی مردان رکن پاکستان سنی رائټرز ګلډ

نوریہ رضویہ پبلشنگ کمپنی رشید روڈ بلال گنج لاہور

د اعلیحضرت عظیم البرکت دڅوارسمے صدۍ مجدّد
امام احمد رضا خان قادری افغانی دیو مبارك تصنیف

# تمہیدِ ایمان

پښتو ترجمه

مترجم


خورشید احمد شاهد القادری میخ بند،
ملاکنډ ایجنسی مردان (رکن پاکستان سنی رائټرز ګلډ)



نوریه رضویه پبلشنګ کمپنی ګنج بخش روډ بلال ګنج لاهور

# دَ تمهیدِ ایمانْ

پښتو ترجمه زمَا دَخپل مشفق استاذ

حضرت العلامه جناب مولانا مولوی

## محمد عبد الحکیم صاحب شرف قادری

صدر مدرس جامعه نظامیه رضویه لاهور

په خواهش سره اوشوه

دوئ دَ دے مکتبه قادریه لاهور مالک هم دے

هرخوک ترینه سنی کتابونه او دَمذهب اهل سنت

لټریچر په رعایت سره ترلاسه کولے شی کړ

(خورشید احمد شاهد القادری)



الله جل جلاله — محمد صلی الله علیه وسلم

الحمد لله

چه دَ څوارلسمے صدئ دَ مجدد

او دینی او مذهبی بزرگ ترین هستی

اعلیٰ حضرت عظیم البرکت قائد اهل سنت **شاه احمد رضا خان**

قدس سره مشهور او نامدار تصنیف

## "تمهید ایمان"

پښتو ترجمه کښے د پښتنو رو نړه خدمت کښے دپاره دَ فائدے دعوامو پیش کړے شو، عوامو له پکار دی، چه ودے کتاب نه ضرور فائده واخلی، ولے چه دے کتاب کښے د ایمان د کمال او د ایمان فائدے او نورے دینی او مذهبی خوږے خبرے بیان شوی دی

ترجمه کوونکے، خورشید احمد شاهد القادری باغکنډی شریف

ضلع دیر چکدره فاضل جامعه نظامیه رضویه اندرون لوهاری گیٹ

لاهور (پاکستان)

# د ترجمه کوونکی مختصر تعارف

زهٔ خورشید احمد ډیر د زړهٔ د اخلاصه شکر اداکوم، چه
الله تعالیٰ د دے مبارک کتاب "تمهید ایمان" د پښتو ترجمه کولو
توفیق راکړو. زهٔ ډیره شکریه د الله تعالیٰ ادا کوم چه د وړوکوالی نه
یے په ښو دیندارو او لویو لویو خاندانونو کښے زما تربیت اوکړو د اول
نه قرآن مجید، خلاصه او منیه م د خپل مشر ورور مولانا نصیرالدین
صاحب نه ویلی دی او بیا م خپل پلار، خپل ماماجی پیر طریقت
لا په وړوکوالی کښے بوتلم. د تحصیل صوابی نوی کلی خوا کښے د
منصب دارو کلی م ورسره څهٔ د پاسه یو کال تیر کړو او بیا م پیر ے
صاحب خپل وطن ته راغے او ورسره زهٔ هم راغلم او د دوی د تربیت
م څلور نیم کاله تیر کړه او زما روحانی او جسمانی تربیت یے اوکړو.
او د کنز نه تر شرح وقایه او ابتدائی صرف و نحو نه تر کافیے وغیره
پورے م تعلیم ترے حاصل کړو. او بیا د دوی په اجازت سره د
شیرگړه ضلع مردان دارالعلوم اسلامیه عربیه کښے داخل شوم.
لیکن د حقوی د غلطو عقیدو په وجه ترے بیا خارج شوم او تنګی
ضلع پښاور ته خپل مشر ورور بوتلم، او تقریباً څلور نیم کاله م د
خپل استاذی المکرم جامع المعقول والمنقول ماحی البدعة



محی السنة جناب محمد غلام جیلانی دامت برکاتهم د تربیت د
لاندے تیر کړل او ابتدائی منطق نه م قاضی پورے او نور کتابونه
ترحماسی شرح جامی او هدایه اولین وغیره د حقوی نه او وییل
او بیا دارالعلوم قادریه بغداده ته راغلم او د حضرت جامع
المعقول والمنقول محی السنة ماحی البدعة جناب ابوالفضل .....
محمد فضل سبحان صاحب فرزند ارجمند شیخ العلماء قدوة الفقها
فخر العلماء، جامع المنقول والمنقول مولانا مولوی شائسته گل صاحب
المعروف به مته مولوی صاحب سره م یو کال تیر کړو او بیا د
ستو گنے د پاره بکټ گنج مینار مسجد ته لاړم، او د دورے د
د پاره د مردان هوتی دارالعلوم خیر المدارس کښے داخل شوم
د حقوی عقائد هم اګرچه زما د نظریے خلاف وو لیکن زما مقصد د دوره
کول وو خپل عقیده م محفوظ ساتله او بیا دوره حدیث د پاره د
خپل مور او پلار او خپل ماماجی صاحب پیر طریقت سندی
وسیلتی و قبلتی شیخ المشائخ قطب الاقطاب جناب الحضرت العلامه
الفهامه غلام محمد صاحب خطیب جامع مسجد باغکنډک
شریف تحصیل چکدره په اجازت سره لاهور جامعه نظامیه رضویه
ته لاړم چه د دے ترغیب راته د دارالعلوم قادریه مهتمم مولوی
فضل سبحان صاحب مدظله ورکړے وو او د حضرت العلامه
مولانا مفتی محمد عبدالقیوم صاحب ناظم اعلیٰ

تنظیم المدارس پاکستان . او د جامع المعقول
والمنقول مولانا مولوی عبد الحکیم صاحب شرف قادری صدر
مدرس جامعه نظامیه رضویه لاهور او د حضرت شیخ الحدیث
والتفسیر و شیخ الادب فاضل B . A اسلامکس الاحضرت العلامه
والفهامه مفتی محمد غلام سرور صاحب د تربیت د لاندے م ..
دوره حدیث سرته ورسوله او په تاریخ ۲۵/۶/۸۰ م دَ
تنظیم المدارس د لاندے دَ دورهٔ حدیث امتحانونه ورکهل
او په تاریخ ۳/۱۰/۸۰ مطابق ۱۴۰۰ هـ ۲۳ ذیقعد کښے م دستار
بندی او شوه او سند م واخست . الحمد لله
او س د الله تعالیٰ نه دا دعا غوارم چه په دے علم زما
عمل نصیب کړی او د هغے مناسب د مذهب دَ خدمت کولو
توفیق راکړی .

زهٔ په نسب د مور له طرفه د طوطی کان بابا او د پیر بابا
رحمة الله علیهما نمسے یم . او دَ پلار له طرفه د شیخ رحمکار کاکا صاحب
نمسے یم او په سلسله قادریه کښے د حضور غوث اعظم رضی الله
تعالیٰ عنهٔ د لمن د لاندے یم او خپل پیر طریقت م هم خپل ماما جی
دے ، او زما د زړهٔ دنیا په دهٔ د دانه ده او په مذهب کښے
د حضور سیدنا امام اعظم ابو حنیفه نعمان بن ثابت کوفی رحمة الله
علیه مقلد یم او مسلک دَ اعلیٰ حضرت عظیم البرکت شاه احمد رضا



فاضل بریلوی معتقد یم -

یم بنده د رحیم کریم غنی سبحان
یم امت کښے دَ احمد نبی سلطان
نښکلے پیر طریقت لرم زه قادریه کښے
یم په مذهب د ابوحنیفه صاحب نعمان
دَ بے دینو بے مذهبو مخالف یم
اشاعت کوم د حدیث او د قرآن
چه په دین، پښتو، عزت باندے قربان وی
د هغے خلقو زهٔ یم قدردان !!

زهٔ شاهد خورشید احمد د دین خدمت کړم
پاک الله دِ شی په مونږه مهربان

# عرضِ حال
## د ترجمه کوونکی

الله جل جلاله چه انسان پیدا کړو نو هر یو باندے یے د هغه مناسب ذمه واری هم اچولے ده هر عالم باندے یے د هغه د علم په مناسبت سره ذمه واری پرته ده ولے چه عالم لوم د الله تعالیٰ دے نو چه عالم ئے خپل لوم ایښے دے، او علم داسے یو هنر دے چه د دے هنر په مقابله ټول هنرونه بیکاره دی، د انګلش مشهور فقره د (KNOWLEDGE is POWER) یعنی علم لوئے دولت دے، که څوک سوچ اوکړی، نو دا لوئے قسمت باندے کیګی، او د ا علم داسے یو درنړا ده چه مخے ته تولے تیارے ختموی او د حق و باطل لار د بنیادم ته صفا ښکاره کوی، نو هر عالم باندے د الله له طرفه دا ذمه واری پرته ده چه کله خپل مخکښے یو ه تیاره وینی نو هغه د ختموی او چه کله اووینی چه یو ځائے کښے باطل کاروونه شروع شوی دی، نو خپل طاقت مناسب سره د هغے مقابله کوی او ختموی ئے، لکه یو شاعر وائی: ے

چوں می بینم که نابینا و چاه است
اگر خاموش بنشینم گناه است



او چه حق ورته معلوم وی چپ دے نه کښینی ځکه چه د حضور انور صلی الله علیه وسلم ارشاد دے: الساکت عن الحق شیطان اخرس د حق نه چه څوک چپ پاتے شی نو هغه ګونګے شیطان دے، نو بنا په دے باندے د څوارلسمے صدئ مجدد اعلیٰ حضرت عظیم البرکت شاه احمد رضا خان قادری رحمة الله علیه د دین ویو لوئے خدمتونه انجام ته رسولی دی او د اونګه د اهل سنت والجماعت نور علماء او اماماں چه په اخلاص سره بغیر د څهٔ طمعے نه ئے د دین اسلامی خدمت کړے دے او د حق مقابله کښے یے د باطل سره جنګونه کړی دی لکه امام غزالی، امام تقی الدین سبکی، امام فضل حق خیر آبادی، شیخ المشائخ عبد الوهاب صاحب د مانکی شریف وغیره حالات او د دوی محنتونه، کوششونه چا نه پټ نه دی نو زما مقصد دے او زما اراده ده چه زهٔ به هم خپل مناسب د دین او مذهب خدمت کوم، که هغه تحریری وی او که تقریری وی د غه شان تولو پښتنو رورنړو ته خدمت کښے عرض دے چه دا بیداره شئ او د باطلو مقابله دکړئ، یو طرفته که او ګورو نو د اسلام سخت دشمن کیمونسټ راپیدا دے بل طرف سوشلزم دے، بل طرفته مودودی ازم دے، بل طرفته بستوے ازم دے، دا سے په سپین لباس د علماء د په جامه کښے د اسلام دشمنان راوتلی دی، او د اسلام دشمنئ ئے اختیار کړے ده، نو هر چا ته ښکاره دی چه د دے

باطلو مقابله وکړی او د حق ملګرتیا اوکړی او د موږ اوپلار هغه زړه طریقه، مضبوطه اونیسی او د دین او مذهب خدمت د خپل خدمت نه مخکښې کړی، زمونږه مخکښې د افغانستان مسئله بالکل د وړاندې ده، د دې نه عبرت اخستل پکار دی، چې افغانستان کښې اول نه دهریت کمیونسټ، مودودیت، پنج پیریت او سوشلسټ طبقې زیاتیدلې، نو انجام ئې دا سې شولو، چه د روس ظالم حکمران قبضه پرې راغله، لیکن افغانستان کښې داسې مخلص مجاهدان او په دین مذهب باندې قربان خلق پکښې دی چه د روس هغه لوئې طاقت ئې پریشانه کړې دې، د روس د قبضې اصل وجه دا وه چه اول نه افغانستان کښې د اباطل موجود وو، او چا ئې څه انتظام نه کولو، نو آخر کښې هغه اوربنکاره شولو، او زبردستی سره پرې حمله اوکړه چه هغې سره د افغانستان خلقو ته اباد و ته ملک ته ډیر سخت سخت نقصانات اورسیدل، نو مونږه له پکار دی چه د دې پاکې مزکې حفاظت اوکړو، چه صباله په مونږه داسې یو ظالم او جابر حکمران مسلط نشی او زمونږه د ا پاکه مزکه د پاکستان د یو ظالم حکمران په حکومت او قبضه باندې ګنده نشی۔ که مونږه سوچ اوکړو نو د سپین لباس بعض خلق چه دین په دشمنی کښې ئې خپل عمرتیر کړه او چا ته پته



نه لګیده، چه دا د اسلام او د پاکستان دشمن دې او کله د دوستو په آخر کښې ئې د مرګ نه پته اولګی چه د پاکستان دا پاکه مزکه ئې قبول نکړی او مړګ ئې بهر ملک کښې راشی لکه د پنډی ملا غلام خان یا ملا مودودی صاحب شو چه د مرګ په وخت د پاکستان دا مزکه ئې د مکر او فریب نه په امن کښې وه .

نو هر چا له پکار دی چه د دې واقعاتو نه عبرت داخلی او د خپل خوښ مذهب خدمت شروع کړی او د اهل سنت والجماعت او د مذهب حنفی ملن کلکه او مضبوطه اونیسی . او دا د الله د دین رسئ ده، الله فرمائی : واعتصموا بحبل الله جمیعاً ولا تفرقوا، نو دې آیت باندې هر مسلمان له ضرور عمل پکار دې ۔ فقط والسلام

وما علینا الا البلاغ ط

من چوں شرط بلاغ است با تو میگویم
تو خواه از سخنم پند گیر وخواه ملال

خورشید احمد شاهد القادری

# دَ تمهیدِ ایمان دَ مصنّف

## مختصر تعارف

دَ څوارلسمې صدۍ مجدّد اعلیٰ حضرت عظیم البرکت العلامه شاه احمد رضا خان رحمة الله علیه هغه مبارک هستي ده چه دَ حق په رڼا یې د باطل تورې تیارې ختمې کړې دي او د دین او دَ مذهب دشمنانو له ئې دَ آسمان تندر جوړ شوے دے او چه کوم ځائے کښې په دَ مذهب دشمني اولیده هغې د نعه بندے کوله او د مسلمانانو د معاملاتو او بد عاتو او رواجونو اصلاح ئے اوکړه او دیر خلق ئے دَ بد عتونو، رسمونو، او رواجونو نه په سمه لار روان کړل. او په عربو او عجمو کښې په بنو صفاتو سره یاد شو، خصوصاً د مکے معظمے او د مدینے منورے جیّد علماء کرامو ورته په ښه نظر سره اوکتل او دَ مشرق مغرب علماؤ دَ دے کارنامو په وجه دَ څوارلسمې صدۍ د پاره یو مجدّد تسلیم کړو، ولے چه دَ اسلام او دَ مذهب هغه ختم شوی احکام او دَ خلقو نه پاتے شوی طریقے یے بیا ژوندے کړې او دَ حق او دَ مذهب د پاره ئے مقابله اوکړه چه باطل ورته ټینګ نه شول او هر ځائے نه یے بدعتونه، رواجونه ختم کړل او دَ احکام اسلامي



تجدید ئے اوکړو، او دَ خلقو دنیوی معاملات ئے دَ شریعت برابر کړل، دَ دوی دَ مبارک تصنیف نه ډیر وضوی نه معلومیږی. چه دے دنیا کښې یو باطل هم نه دے پریښے بلکه دَ هغې مقابله ئے کړے ده او دخپل علم او مذهبی غیرت په ذریعه سره ئے هغه باطلوله شکست ورکړو، ده په زمانه کښې داسے بعض سپین لباس کښې د مذهب دښمنان موجود وو، چه ظاهره ئے د اسلام نوم اغستو، او خلقو ته ئے ویل چه موږه دَ مذهب خدمت کوو، لیکن چه اعلیٰ حضرت عظیم البرکت شاه احمد رضا خان علیه الرحمة د هغوی فاسد وخیالاتو او دَ هغوی په حقیقت باندے خبر شو، نو سمدستی ئے خبر کړل چه ستاسو دا لار خطا ده په سمه لاره شئ، په هغه دښمنانو کښې بعض کفریه عقائد او کفریه خبرے موجود وے دا علیٰ حضرت دا خیال وو چه دوی به دا غلط او کفریه خبرے پریږدی او صحیح به شي لیکن هغوی سره د علم نه د غه کفریه خبرو باندے ټک وو، اعلیٰ حضرت پوه شو چه دوی دَ خپل عقائد و فاسد وخیالاتو او کفریه خبرو نه نه اوړی او دَ ده مکمل یقین پیدا شو لو، نو د کفر فتویٰ یې په هغوی ورکړه او بیائے هغه فتوی د مکے معظمے او مدینے منورے وغیره علماء ته پیش کړه، هغوی تسلیم کړه چه دے فتویٰ کښې څه غلطی نشته او که څوک دَ دے فتوی مخالف وی او دا عقائد او خبرے چا کښې

وی، نو هغه په رښتیا کافر دی، نو د حرمینو طیبینو علماء کرامو
هغه د فتوی تائید اوکړو. اعلیٰ حضرت عظیم البرکت چه د
کومو کفریه عقائدو رد ونه اوکړل، د هغې بعض خبرې
مثبت نمونه خروار پیش کوم.

(۱) قاسمی ګروپ د خاتم النبیین نه انکار اوکړو، دوی ورله بیا بیا
خبردارې ورکړو، خو چه یقین ئې پیدا شو، چه خپله خبره
باندې کلک ولاړ دې، نو لکه د قادیانانو په هغه د کفر حکم
اوکړو او د هغه فتوی د کفر د حرمین شریفین علماوو هم قبوله کړه.

(۲) اسماعیلی ګروپ او خلیلی او رشیدی ګروپ د امکان کذب
په لوکفر یه عقیده ایمان راوړو. او د الله په ذات ئې
حمله اوکړه، دوی ئې هم خبردار کړل، لیکن چه یقین ئې
راغې چه خپلې عقیدې نه نه اوړی، نو د کفر فتوی ئې
پرې اولګوله او د هغه فتوی هم حرمین شریفین جید علماوو
منظوره کړه.

(۳) ځمدارنګ اشرفی ګروپ په دې خساره او زیان کښې مبتلا دو

(۴) اشرفی ګروپ او د ده نورو خلیفانو د امت اعمال د پیغمبر
سره برابر کړل. او دا عقیده ئې لرله چه د امت اعمال
د پیغمبر د اعمالو سره برابر دی بلکه کله کله زیاتیږی، هم د
دوئی هم دا حشر وشو، په دې کفر کښې ذکریا ګروپ هم



شامل دو

(۵) د شیعه روافضو ئې سخت رد اوکړو چه مثال ئې نشی پیدا کیدې.

(۶) د قادیانیت لا مثال تردید ئې اوکړو چه خلق اوس هم د هغه د
تعلیماتو د لاندې د قادیانانو تردید کوی، او د هغه د ښودلې ساتي.
شوو دلائلو په رڼا کښې خپل ځان د قادیانیت د کفر نه بچ

(۷) داسې اشرفی ګروپ او نورو لواحقینو ئې د حضور اکرم صلی
الله علیه وسلم د علم نه انکار اوکړو په هغوئی ئې سخت
رد ونه اوکړل چه قول ئې لاجواب کړل.

(۸) دیوبندی ګروپ د حضور اکرم صلی الله علیه وسلم د صفاتو نه
انکار اوکړو، او د انبیا کرامو په شان کښې ئې د تنقیص خبرې
اوکړې، او سردار دو جهان صلی الله علیه وسلم په شان کښې ئې
هم ګستاخانه الفاظ استعمال کړل، شاه احمد رضا خان علیه الرحمة
د دې ټولو باطلو مقابله اوکړه، او لیکن د ده پیدا شو، چه
دوئی خپلې خبرې نه نه اوړی نو مجبوراً ئې پرې د کفر حکم
اوکړو چه هیڅ د هغې فتوی جواب او نکړې شو او د ده د
فتوی په وجه په ټوله دنیا کښې رسوا شول چه خلقو ورسره
تعلقات هم ختم کړل.

ملک العلماء مولانا ظفر الدین بهاری رحمة الله علیه د اعلیحضرت
تصنیفات راجمع کړی دی او مستقل کتاب ئې د هغې په نومو

ذکر کړے دے، چه د هغې نوم **المجمل المعدد لتالیفات المجدد** دے یعنی د اعلیٰ حضرت د تصنیفاتو بحث هم دلته اجمالاً بیان شوے دے، او اجمال طریقے سره ئے ۳۵۰ کتابونه شمار کړی دی۔

امام اهل سنت اعلیٰ حضرت په پنځوس علومو او فنونو کښے کتابونه لیکلی دی، او د احیاء او تجدید دین کارنامے ئے ادا کړیده، د هغې حسب ذیل اجمالاً بحث شوے دے۔

| علم عقائد کښے | ۱۳ تصانیف کړیدی | علم تصوف کښے | ۳ تصانیف کړیدی |
|---|---|---|---|
| 〃 کلام | ۱۷ 〃 〃 | 〃 سلوک | ۲ 〃 〃 |
| 〃 تفسیر | ۷ 〃 〃 | 〃 اخلاق | ۱ 〃 〃 |
| 〃 تجوید | ۲ 〃 〃 | 〃 ادب | ۶ 〃 〃 |
| 〃 رسم الخط قرآن مجید | ۱ 〃 〃 | 〃 لغت | ۲ 〃 〃 |
| 〃 حدیث | ۱۱ 〃 〃 | 〃 تاریخ | ۳ 〃 〃 |
| 〃 اصول حدیث | ۲ 〃 〃 | 〃 مناظره | ۱۸ 〃 〃 |
| 〃 فضائل مناقب | ۳۱ 〃 〃 | 〃 تکسیر | ۱ 〃 〃 |
| 〃 اذکار | ۵ 〃 〃 | 〃 علم الوفق | ۱ 〃 〃 |
| 〃 ترهیب ترغیب | ۱ 〃 〃 | 〃 جفر | ۳ 〃 〃 |
| 〃 سیر | ۳ 〃 〃 | 〃 توقیت | ۶ 〃 〃 |
| 〃 فقه | ۱۵۰ 〃 〃 | 〃 ریاضی هندسه | ۶ 〃 〃 |
| 〃 اصول فقه | ۹ 〃 〃 | 〃 هیئات | ۳ 〃 〃 |



| زیجات کښے | ۱ تصانیف |
|---|---|
| حساب 〃 | ۱ 〃 |
| ارثماطیقی 〃 | ۳ 〃 |
| جبر ومقابله 〃 | ۱ 〃 |
| تنجیم 〃 | ۱ 〃 |
| رد هنود 〃 | ۱ 〃 |
| رد آریه 〃 | ۲ 〃 |
| رد نصاری 〃 | ۳ 〃 |
| رد نیچریه | ۷ 〃 |
| رد ندوه | ۱۷ 〃 |
| رد قادیانیه | ۶ 〃 |
| رد اسماعیل دهلوی | ۱۰ 〃 |
| رد نانوتوی | ۱۱ 〃 |
| رد گنگوهی | ۲۵ 〃 |
| رد تهانوی | ۹ 〃 |
| رد نذیر حسین | ۶ 〃 |
| رد غیر مقلدین | ۲۶ 〃 |
| رد وهابیت | ۷۶ 〃 |
| رد روافض | ۴ 〃 |

| رد نواصب | ۱ تصانیف |
|---|---|
| رد مفسقه | ۷ 〃 |
| رد تفضیلیه | ۷ 〃 |
| رد متصوفه باطله | ۲ 〃 |
| مسائل شتی | ۵ 〃 |
| مطبوعه تصانیف | ۱۱۲ پوره دی |
| مبیضه | ۱۲۸ 〃 |
| مسوده | ۵۴ 〃 |
| ناتمام | ۱۶ 〃 |
| چه کوم ورک شوی دی | ۴ 〃 |

عربی ژبه کښے
۱۰۰ کتابونه دی

فارسی ژبه کښے
۲۷ کتابونه دی

په اردو کښے 〃 ۲۲۳ 〃

د طریقه او تصانیف هم په طریقه اجمال سره بیان شوی مختصر تفصیل د پاره د مولانا صاحب مذکور کتاب المجمل المعدد اول نه آخره پورے اوګورئ صفحے ۳۲ دی

اعلیٰحضرت بریلوی دامت برکاتهم دومره تصانیف په مختلفو مسئلو کښې لیکلی دی چه خلق ئې تیږے نه دتړا ته داو بیتلی دی۔ واقعی خبره داده چه دَ مجدّد ذمه واری ئې پوره کړې ده لکه څنګه چه حضور اکرم صلی الله علیه وسلم دَ مجدّد په حقله فرمائیلی دی:

انّ الله یبعث لهٰذه الامّة علیٰ رأس کل مائة سنة من یجدّد لها دینها۔

الله پاک دا لیږی په سر د هر سلو کالو باندے دَ اُمت لره داسے یو هستی چه نوی کوی به دوی ته د دین پاتے شوی احکام یعنی چه خلقو پرے د غفلت او سستی د وجے نه عمل پریخے دی، او د دین هغه احکام او اعمال زاړه شوی دی، نو د مجدّد دا کارنامه ده چه هغه نوی کوی او دنیا کښې د تجدید او احیاء دین کردار داسے ادا کوی چه ټوله دُنیائے او منی چه دے صدئ د پاره دَ مجدّد حیثیت لری لکه اعلیٰحضرت شاه احمد رضا بریلوی قدس سره د تجدید واحیاء دین حیثیت هر چا منلے وه، او دَ مشرق، مغرب، جنوب او شمال ټول علماء په اتفاق سره دوئ ته دَ مجدّد خطاب ورکړے وه. خصوصاً د مکے معظمے او مدینے منورے مشهور او عزتمند و علماؤ هم اقرار کړے وه. او دوئ په مجدد والئ په هم فتوی ورکړے وه. الاماشاء ؤ کلاهغه خلق ترے مخالف وو چه کوم د دین او د مذهب ښکاره دشمنی شروع کړے وه۔



امام شاه احمد رضا خان بریلوی دَ علمیت ډیره لویه مرتبه لرله، په دے بیان باندے، مولانا ابو الصالح محمد فیض احمد اولیسی یو کتاب لیکلے دے نوم ئې امام احمد رضا او علم حدیث دے صفحات ئې ۸۸ دی. مطالعه ئې ډیره ضروری ده. د شاه احمد رضا خان بریلوی رحمة الله علیه نعتیه کلام هم ډیر مقبول دے او ډیر شهرت لری، د دوی په حقله شاعر لکهنوی یو کتاب لیکلے دے چه نوم ئې "تاریخ نعت گوئی میں حضرت رضا بریلوی کا منصب" دا کتاب د مرکزی مجلس رضا لاهور نه شائع شوے دے او مفت ئې غوښتے شی، د دوئ نعتیه کلام د دوئ دَ مبارک تصنیف حدائق بخشش نه اندازه لګی چه دے وخت سره ئې غالب او داغ غوندے د اردو ادیب شاعران حیران کړی دی، او ټول درته ګوته په خوله نیولی ناست دی، د دے د پاره دَ حدائق بخشش کتل ډیر ضروری دی، او دَ اردو نعت خوانانو د پاره ضروری کتاب دے۔ دَ قرآن مجید دَ ترجمے په حقله که اوګورو، نو په هر عالم او هر مترجم باندے لویه مرتبه حاصله کړے ده چه مقابل کښې د اشرف علی تهانوی او دَ محمود حسن او دَ شاه عبد القادر وغیره ترجمے کالعدم دی، چه دَ دوی په ترجمو کښې ډیرے غلطئ راغلی دی، او د ادب لحاظ ئې هم نه دے کړے، او لغت ته ئې هم نه دی کتلی، او دَ اعلیٰحضرت ترجمه د ادب او احتیاط په میدان کښې ډیره لویه

مرتبه لری، او د هر قسم غلطئ نه پاک ترجمه ده، صرف د دے
ترجمے د محاسنو او خوبو کښے ډیرو علماؤ تصانیف لیکلی دی، او
دا ئے ثابته کړے ده چه ترجمه حقیقت کښے د اعلیٰ حضرت ترجمه
ده، او باقی دوی دے په نسبت سره هیڅ نه دی، دده د ترجمے په صفت
او محاسنو کښے ملک شیر محمد خان اعوان کتاب لیکلے دے ۵۶ صفحات
ئے دی۔ نوم ئے محاسن کنزالایمان دے، بل تصنیف حضرت العلامه
مولانا غلام رسول سعیدی لیکلے دے، نوم ئے ضیائے کنزالایمان
دے او ۲۷ صفحے دی، مطالعه ئے ضروری ده، چه د اعلیٰحضرت
بریلوی رحمة الله علیه د شخصیت او هستئ قدر واضح شی، چه دے
خو مره بلند پایه عالم وو، او دے د علم سره پیر طریقت هم وو او د
تصوف کښے ئے هم ډیر تصانیف کړی دی تک محکښے تیر شول،
حاصل دا دے چه الله تعالیٰ اعلیٰ حضرت له علم ظاهری باطنی
ورکړے دے، او د زمونږ زړه ئے ګرلو، د دین او د مذهب
په حقله پکښے لوئے غیرت پروت وو، او زړه ئے د محمد
صلی الله علیه وسلم په مینه او محبت سره ډک وو، د ډیر محبت د
وجه ئے په سر و مال قربان وو او د حضور اکرم صلی الله علیه
وسلم په شان کښے ئے ګستاخی او د نقصان خبرے نشو ے
برداشت کولے۔ مرد میدان وو، بزرګ شخصیت وو او
مونږه هم دا سوال کوو، چه الله پاک مونږ له د ده



په شان علمیت محبت او اخلاق بزرګی تصوف او غیرت
ایمانی راکړی، او الله د د ده په برکت او د خپلو نورو
اولیاؤ په برکت باندے زمونږ د دے خوږ مذهب امداد
اوکړی، او د دے مذهب د خدمت کولو توفیق د الله
تعالیٰ راکړی۔ آمین فقط، والسلام۔

خورشید احمد شاهد القادری

# اصل شروع په

# تمهیدِ ایمان





# عرضِ حال

بسم اللّٰہ الرحمٰن الرحیم

اسلام یو مکمل ضابطه حیات دے، د دے خپل نظام عبادات وعقائد دی، او نظام اخلاق دی، نظام د معیشت او نظام حکومت دے، او د ټولو نه مقصدی خبره داده چه چرته د یو طرف نه هم صرف نظر کولو باندے مسلمان نشی جوړیدے، یعنی دا نشی کیدے چه ته د حضور سرورِ کائنات صلی الله علیه وسلم په ښودے شوے طریقه عبادت اوکړے او د ژوند نور حالات او تهذیب دِ ے په بله طریقه وی یا خپل معاشی معاملات د دین د پیغمبر صلی الله علیه وسلم باندے تیر وے، لیکن د حکومت کولو طریقه دِ د اسلام نه خلاف وی، که چرے ته چرته بل مذهب باندے وے، نو دا کیدے شوه، مګر په دے کامل او مکمل دین باندے یقین ساتلو په صورت کښے خپله ټوله زندګی د اسلام په اصولو تیرول ضروری دی، په بل صورت سړه نه په دین کښے شاملیدے شی او نه د دے له برکتونو او د فیض نه څه فائده اخستے شی۔

د دین په یو عمل کښے هم کوتاهی کولو باندے سړے د

غلطۍ مرتکب کیږي، لیکن دَ خپلو غلطو مقصدونو پوره کولو په
غرض خپله غلطۍ باندے همیشه والے کول، او د دے مقصدونو دَ
جواز دپاره دلائل راوړلو باندے دګمراهۍ مرتکب کیږي، او دغه ډیلے
کیږي چه دے دَ دین په آبادولو کښے خرابي داخلولو باندے بالکل
د دین هغه شکل او طریقه ختمول غواړي، دا قسم خلق په مختلفو
دلو او جماعتونو او پارټو کښے ننوتلي دي۔ په دوئ کښے بعضې داسے
خلق دي چه دَ عقائدو په باره کښے د نرم والي نشان جوړوي
څوک د دین دَ صحیح نظام معیشت په ځائے بل څه نظام غوره
کولو مشورے ورکوي، څوک یو نوے نظام حکومت په بنځه
ورنگ کښے مسلمانانو ته وړاندے کوي، او څوک په معاشره
کښے د غیر اسلامي طریقو په صفت باندے خپله ژبه ګنده کوي۔

اعلیٰ حضرت مجدد دین و ملت عظیم البرکت علامه
شاه احمد رضا خان بریلوی قدس سره العزیز په خپل کتاب
تمهید ایمان کښے دَ قرآن حدیث او دَ دین د بزرګوا امامانو
د اقوالو او وینا ګانو په رنړا کښے دکفر او دَ اسلام حدونه
متعین کړي دي، او داښے واضحه کړے ده چه څوک دَ دین په
معاملو کښے د آزاد خیالاتو رواج کول غواړي هغه حقیقت
کښے د دین مخالف دے، او دین ته نقصان رسول غواړي۔
او دَ خدائے او دَ پیغمبر صلی اللہ علیه وسلم د دین او دَ دین دَ



اصولو په باره کښے کفریه کلمات (خبرے) روا کوونکي خلق هیڅ
کله مسلمان نشي پاتے کیدے۔

اعلیٰ حضرت مجدد دَ صاحب دے کتاب کښے دا واضحه کړے
ده چه په قرآن حدیث کښے تاویل او تحریف کوونکي خلق د
اللہ تعالیٰ دَ مقرر شوو حدودو نه توپ وهي او ځان ترے
تیر او باسي او په خپل کار او عمل باندے فخر کوي، او خپل
ځان ته مشهور علماء وائي، او بیا بے دیني رواج کول غواړي۔
نور دَ دوئ په کفر کښے څه بحث کولے شو۔

د دین د دښمنانو دَ نشر و اشاعت په ذریعو سره
مختلف طریقو باندے قابض کیه لو او قابض او سیدلو په وجه
اعلیٰ حضرت بریلوی رحمة اللہ علیه خلاف پروپیګنډے کوي۔
چه دَ دوي تخصص کافر ګري ده، دَ دے دَ پاره دے ز مونږ دکفر
فتوے ورکوي، که نه دي، نو مونږ خو دَ دین خادمان یو، په
دے طریقه سره دښمنانو عامو مسلمانانو ته هر قسم غلطۍ خورے
کړي دي، مثلاً عامو خلقو کښے مشهوره ده: چه څوک خپل ځان ته
مسلمان وائي، نو هغه ته کافر نشي ویلے" یا ویلے شي، چه!
دَ حضرت امام اعظم ابوحنیفه رضي اللہ عنه مذهب دے
چه مونږ دَ قبلے خاوندانو کښے هیچا ته کافر نشو ویلے؟ یا
چه په چا کښے یو کم سل خبرے دَ کفر وي، او یوه خبره دے

بسم اللہ الرحمٰن الرحیم

الحمد للہ رب العٰلمین والصلوٰۃ والسلام
علی سید المرسلین و خاتم النبیین محمد و اٰلہ
و اصحابہ اجمعین الیٰ یوم الدین باتبجیل و
حسبنا اللہ ونعم الوکیل ط

مسلمانانو وروڼړو ته عاجزانه دست بسته درخواست
خوږو وروڼړو! السلام علیکم ورحمة اللہ وبرکاتہ۔
اللہ دې تاسو ټول او ستاسو په څېر دا نا چیز او ګنهګار په
خپل حق دین قائم ولری او د خپل حبیب محمد رسول اللہ صلی اللہ
علیہ وسلم ریښتی محبت دِ مونږ ته راکړی، او په دے دِ
زمونږه خاتمه اوکړی۔

آمین یا ارحم الراحمین

اللہ جل جلالہ فرمائی :۔
إِنَّا أَرْسَلْنَاكَ شَاهِدًا وَّمُبَشِّرًا وَّنَذِيرًا ۝ لِّتُؤْمِنُوا بِاللَّهِ
وَرَسُولِهِ وَتُعَزِّرُوهُ وَتُوَقِّرُوهُ ۝ وَتُسَبِّحُوهُ بُكْرَةً وَّأَصِيلًا ۝
سورۃ الفتح پ ۲۶ ع ۹

اے خوږه حبیبه! بے شک مونږه ته لیږلے ئے ګواه
او زیرے ورکوونکے، او ویروونکے (د عذاب د خدائے نه) د



ویاره ورکے چه اے خلقو!۔
تاسو په اللہ او د هغه په رسول ایمان راوړئ او د رسول
تعظیم و عزت احترام اوکړئ، او سحر او ماښام د اللہ پاکے
بیان کړئ۔

مسلمانانو اوګورئ، د دین اسلام د رالیږلو او د قرآن مجید
د نازلولو مقصود څنګه ستاسو خدائے در ته خبرے اوښودو لے :۔
اول :۔ داچه په اللہ او په رسول ایمان راوړئ۔
دویم :۔ داچه د رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم تعظیم اوکړئ۔
دریم :۔ داچه د اللہ جل جلالہ په عبادت کښے خپل وخت
تیروئ۔

مسلمانانو :۔ د دے درے لویو خبرو ترتیب ته فکر اوکړئ، د
ټولو نه مخکښے ئے د ایمان ذکر اوکړو، او د ټولو نه روستو ئے
د خپل عبادت، او په مینځ کښے د خپل خوږ حبیب صلی اللہ
علیہ وسلم د تعظیم۔

د دے دپاره چه بغیر د ایمان نه تعظیم په کار نه راځی لکه
نصاری (فرنګیان) چه د حضور صلی اللہ علیہ وسلم تعظیم او
عزت کوی او د دوی متعلق هر قسم اعتراضات دفعه کولو دپاره
ئے تصنیفات جوړ کړیدی، مګر چه هر کله د دوی ایمان نشته
نو هیڅ فائده ورته نه رسوی، ځکه چه دا ظاهری تعظیم دے

کہ پہ زړونو کښے ئے د پیغمبر صلی اللہ علیہ وسلم رښتنے مینه
وے، نو ضرور به ئے ایمان راوړے وے او چه څو پورے د
چا په زړه کښے د خوږ حبیب صلی اللہ علیه وسلم تعظیم نه وی
نو که ټول عمر په عبادت کښے تیر کړی، خو بیکاره دے او مردود
دے، لکه جوګیان او راهبان چه دنیا ئے پریښے وی او د خدائے
پاک ذکر او عبادت کښے ئے خپل عمر ختم کړو، مګر څو پورے چه د
محمد صلی اللہ علیه وسلم تعظیم ئے نه وی، نو څه فائده؟ دغه
عبادت ئے په هیڅ قیمت سره د اللہ په دربار کښے قابل قبول نه
دے. اګر که ټول عمر په عبادت کښے تیر کړی او د لا اله الا الله ذکر
کوی. الله جل جلاله داسے خلقو ته فرمائی :-

وَقَدِمْنَا إِلَىٰ مَا عَمِلُوا مِنْ عَمَلٍ فَجَعَلْنَاهُ هَبَاءً مَنْثُورًا ٥

"دوئ چه څه عملونه کړی دی، ټول برباد دی"

هم دوئ ته بل ځائے کښے فرمائی :-

عَامِلَةٌ نَاصِبَةٌ ٥ تَصْلَىٰ نَارًا حَامِيَةً ٥

عمل ئے کړے وی، مشقت ئے برداشت کړے دی او
بدله ئے څه شی، صرف دا چه په ګرم اور کښے به پرته وی،
العیاذ بالله تعالیٰ :
مسلمانانو! تاسو اووائی چه د حضور صلی اللہ علیه وسلم



تعظیم مدار ایمان، مدار نجات او مدار قبول اعمال شو او که
او وائی چه ضرور د ایمان نجات او د اعمالو د قبول دارومدار
په تعظیم باندے دے۔

مترجم وائی :- بعض کمزور عقیدے والا وائی چه اعلیٰ
حضرت شاه احمد رضا خان ولے داسے لیکلی دی چه :-
"تمہارا رب عزوجل فرماتا ہے" داسے ئے ولے نه دی
لیکلی چه : "رب عزوجل فرماتا ہے" یعنے "تمہارا" لفظ ته
پکښے څه حاجت وو. نو د دے متعلق جواب دا دے، چه
"تمہارے" لفظ چه پښتو کښے په "ستاسو" لفظ سره استعمالیږی
دا کلمه د اوریدونکی دستلی او توجه کولو دغه ته رغبت
او د ډیر شوق ورکولو د پاره راځی. لکه الله تعالیٰ پخپله د خپل
حبیب په ژبه موږ ته فرمائی :

وقال ربکم ادعونی استجب لکم، دلته کښے د
"ربکم" معنے داسے جوړیږی یا لکه په یو حدیث کښے سیدنا
حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه فرمائیلی دی :
سمعت نبیکم حالانکه دے نبی د هر چا دے لیکن د خلقو
د شوق او محبت زیاتولو د پاره ئے داسے فرمائیلی دی او دا
طریقه حضرت تمهید ایمان کتاب کښے اعلیٰ حضرت بریلوی اختیار
کړے ده او مقصد ئے دا دے چه د خلقو مینه او محبت د خدائے

او د خدائے د رسول سره زیات شی، د دے سره د بعضے خلقو
لکه وهابیان شول، اعتراضات شول۔

---



## ستاسو خدائے تعالے فرمائی :-

قُلْ إِنْ كَانَ آبَاؤُكُمْ وَأَبْنَاؤُكُمْ وَإِخْوَانُكُمْ وَأَزْوَاجُكُمْ وَعَشِيرَتُكُمْ وَأَمْوَالٌ اقْتَرَفْتُمُوهَا وَتِجَارَةٌ تَخْشَوْنَ كَسَادَهَا وَمَسَاكِنُ تَرْضَوْنَهَا أَحَبَّ إِلَيْكُمْ مِنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ وَجِهَادٍ فِي سَبِيلِهِ فَتَرَبَّصُوا حَتَّىٰ يَأْتِيَ اللَّهُ بِأَمْرِهِ ۗ وَاللَّهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْفَاسِقِينَ ۝

(سورة التوبة پ۱۰ - ع۹)

اے خویږه پیغمبره! ته دے خلقو ته اووایه که چرے ستاسو پلاران، ستاسو ځامن، ستاسو رونړه، ستاسو بیبیانے، ستاسو ټبر او ستاسو هغه مالونه چه جمع کړی مو دی، او هغه تجارت چه تاسو ته د نقصان خطره کوی او ستاسو د تسلئ او خوشحالئ، مکانونه، په دے کښے هر څیز هم کچرے تاسو ته د الله او د الله د رسول نه او د الله په لار کښے د کوشش کولو نه زیات محبوب وی او دے څیزونو سره مو زیاته مینه وی، نو انتظار کوئ چه الله تعالے به خپل عذاب نازل کړی، او الله تعالی فاسقانو او نافرمانو ته هدایت نه کوی۔

د دے آیت نه معلومه شوه چه په دنیا کښے چا ته د خدائے

شول چه د ایمان حقیقی او واقعی کیدو د پاره دوه خبرې ضروری
دی. د محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم تعظیم او د محمد رسول الله
صلی الله علیه وسلم محبت په هر څه کښې مخکښې کول.

نو ددې ازمیښت یوه ظاهره طریقه دا ده چه د چا سره
ستاسو په زړه کښې تعظیم وی، یا عقیدت وی، دوستی وی، محبت
وی، لکه ستا پلار، ستا استاد، ستا پیر، ستا اولاد، ستا ورور،
ستا دوستان، ستا مشران، ستا ملګری، ستا مولوی، ستاسو حافظ
ستاسو مفتی، ستاسو واعظ وغیره وغیره.

هرڅوک چه وی چه کله دوی کښې یو تن د محمد رسول الله
صلی الله علیه وسلم په شان کښې ګستاخی اوکړی. نو بالکل ستاسو
په زړونو کښې د هغوی محبت او تعلق ختم شی، او سمدستی
د هغوی نه جدا شی، دوئی لکه د پیو نه د کوچو په شان بیل که
او اخوا ئې او غورزوه. د دوئی د شکل او د دوئی د نوم نه
نفرت اوکه، بیا په دوئی کښې د خپلوئ د رشتې د تعلق، محبت
او الفت لحاظ مه ساته، او د دوئی مولوی توب او شیخی او
زیرکی او لوئی د ځان د پاره لویه خطره اوګڼړئ، آخر دا هر څه
چه وو د محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم په غلامئ، او
تابعدارئ په بنا باندې وو هر کله چه یو سړے بیا ددې په
شان کښې ګستاخ جوړ شو، نو بیا زمونږ ورسره څه تعلق پاتې



ګئی، د دوئی په جبو او پټکو باندې خندا اوکړو، ولے یهودیان
ښه دا غوندې، پټکی نه پسروی. د دوئی په نوم او علم او ظاهری
اهلیت باندې مونږ خندا اوکړو. ولے پادریان د خپلې
فلسفې په چیر علم سره لوئے لوئے علومو او فنونو نه ډک دی خبر؟
او که دا نه وی. بلکه ددې ښکلی پیغمبر حضرت محمد رسول الله
صلی الله علیه وسلم په مقابله کښې ددې د هغه خبره او منله یعنې
چا د حضور صلی الله علیه وسلم په شان کښې ګستاخی اوکړه او تا د
هغه سره دوستی کوله یا دے د هغه ګستاخ د هر بد کرداره سړی
نه زیات ناکاره او نه ګڼړلو یا ستا زړه کښې د هغه د پاره سخت
نفرت را نغی، نو خدائے د پاره ته انصاف اوکړه چه ته به د
ایمان په امتحان کښې څنګه کامیاب شې. قرآن و حدیث چه د
ایمان دارو مدار په کوم شی پورې ساتلے وو د هغې نه څومره
لرې او وتلے.
مسلمانانو! آیا د چا په زړه کښې چه د محمد رسول الله

---

[1] د دې قسم پیرانو نه هغه مراد دی چه بې علمه او بې عمله دی یا
ظاهر صحیح پټکی مسواک وغیره ئے وی لیکن زړه کښې ئے عداوت دی. پاک
حبیب صلی الله علیه وسلم سره لکه دیوبندی پیران شول یا تبلیغی جماعت امیران شول چه بل نه
د سنت نبوی ترغیب ورکوی، او پخپله ئے زړه کښې د دشمنی مرتبه دی.
(۱۲ مترجم)

صلی اللہ علیہ وسلم تعظیم پروت دی نو هغه به د دا سے گستاخ او بدگویه خبرے برداشت اوکړے شی (هرگز نشی برداشت کولے) اگر کله د غه گستاخ د ده پیر یا استاد یا پلار دی نو هم ولے چاته چه محمد رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم ډیر خوږ دی هغه به له دغه گستاخ نه سمدستی زړ نفرت اونکړی؟ (ضرور به کوی) اگر کله د ده دوست یا ورور یا خوے وی نو هم۔ د خدائے دپاره به خپل ځان رحم اوکړی او د خپل رب خبرے وا اوروی چه څنګه اللہ تعالیٰ تاسو خپل رحمت ته غواړی۔ (اوګوری)

## ستاسو رب تعالیٰ فرمائی :-

لَا تَجِدُ قَوْمًا يُّؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ يُوَآدُّوْنَ مَنْ حَآدَّ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ وَلَوْ كَانُوْٓا اٰبَآءَهُمْ اَوْ اَبْنَآءَهُمْ اَوْ اِخْوَانَهُمْ اَوْ عَشِيْرَتَهُمْ ؕ اُولٰٓئِكَ كَتَبَ فِىْ قُلُوْبِهِمُ الْاِيْمَانَ وَاَيَّدَهُمْ بِرُوْحٍ مِّنْهُ ؕ وَيُدْخِلُهُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِىْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ؕ رَضِىَ اللّٰهُ عَنْهُمْ وَرَضُوْا عَنْهُ ؕ اُولٰٓئِكَ حِزْبُ اللّٰهِ ؕ اَلَآ اِنَّ حِزْبَ اللّٰهِ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ۝

(سورۃ المجادلہ ع ۳ پ ۲۸)



ترجمه:- نه به مومے یو قوم لره چه ایمان ئے په خدائے او د آخرت وی چه د هغه چا سره دوستی ساتی چه د خدائے او د ده د رسول مخالفت کوی اگر کله د ده پلاران یا ځامن، یا رونړه یا ټبر وی، نو هم دا هغه خلق دے چه د دوئ په زړونو کښے اللہ تعالیٰ ایمان ایښے دے او د خپل روح نه ئے د دوئ امداد اوکړو او داخل به ئے کړی هغه باغونو ته چه بهیږی به لاندے د هغے نه ولے، همیشه به وی دوئ په هغے کښے۔ دوئ به د اللہ نه خوشحاله وی او اللہ به له دوی نه خوشحاله دی، او هم دا د اللہ ډله ده او هم دوئ بریے مونده ونکی دی۔

دے مبارک آیت کښے ئے صفا او فرمائیل چه څوک د اللہ او د رسول په شان کښے گستاخی کوی مسلمان به د هغه سره دوستی او محبت نه ساتی، د دے نه ظاهره دا معلومه شوه چه څوک د دسره دوستی کوی هغه مسلمان نه دے بیا اللہ تعالیٰ دے حکم د عام کولو دپاره ظاهر اعلان اوکړو چه که پلار، ورور، خوسه دی قبول ئے او تمام دل یعنے هر څوک چه څوموره ستاسو په خیال کښے لوئے سړے وی او د عزت خاوند وی او د خلقو ورسره طبعی طور بانـدے محبت زیات وی خو چه د چا ئے ن وی نو د گستاخی کولو نه پس به بیا د

هغهٔ محبوب دوست وغیره سره محبت نهٔ ساتی ۔ اونهٔ ئې
ګستاخی برداشت کولے شی او کۀ داسے نۀ وی نو بیا مسلمان نفس
پاتے کیدے، د الله تعالیٰ دومره فرمان خلقو د پاره بس وو ۔
لیکن ګوری دے تاسو د خپل رحمت طرف ته بلی او د خپلو
لویو نعمتونو لالچ ورکوی چه د الله او د رسول د عظمت په مخ
کښے کۀ تۀ د چا لحاظ او نکړے، د چا ګستاخ تعلق او نۀ ساتے، نو
تا ته به څۀ څۀ فائدے حاصلے شی ۔

(۱) الله تعالیٰ به ستاسو په زړونو کښے ایمان نقش کړی په دے
کښے انشاءالله د آخرے خاتمے د ښۀ والی ښکلے زیرے دے
چه د الله تعالیٰ لیکلی شوی نۀ ورانیږی ۔

(۲) الله تعالیٰ به د روح القدس په ذریعه ستاسو امداد وکړی

(۳) تاسو به همیشه د پاره جنتونو کښے داخل کړی چه بهیږی
به لاندے د هغے نه نهرونه ۔

(۴) تاسو ته به د الله تعالیٰ ولی او وییلے شی، خدائی خلق
به شئ ۔

(۵) د خپل زړۀ مرادونه به بیا مومئ. بلکه د خپل خیال، او
امید او ګمان نه په څو درجو باندے زیات ۔

(۶) د ټولو نه زیاته خبره داده چه الله تعالیٰ به درته رضا
شی ۔



(۷) الله تعالیٰ په خپله ورته فرمائی چه زۀ تاسو نه راضی یم،
تاسو زما نه راضی یئ ۔ بنده د پاره د دے نه زیات
بل څۀ نعمت کیدے شی ۔ چه د دوئ مالک د دوئ نه
راضی شی مګر الله تعالیٰ د دے نه زیاته مهربانی په دے کوی
چه ورته فرمائی چه زۀ تاسو نه راضی یم او تاسو زما نه راضی
یئ ۔ مسلمانانو ! په خدائے قسم کۀ چرے د بنیادم په کروړونو
سا ګانے وی او هغه ټولے په دے لویو دولتونو باندے قربان
کړی، نو د الله کۀ صفت ئې بیا مومی ۔ بیا د زید او عمرو سره
تعلق تعظیم او محبت یو شان قطع کول هم لویه خبره ده چه په
دے باندے د بیش قیمته نعمتونو وعده فرمائیلی ده او د دهٔ
وعده یقیناً رښتیا وی ۔ د قرآن کریم عادت دے چه یو حکم
بیانوی نو لکه څنګه چه د منونکو خلقو د پاره ئې زیری ورکړی
وی د غه شان په نۀ منونکو باندے هم ویره او خطره راولی ۔
او د دے بیان ورته کوی چه د کومو خلقو همت نۀ وی او
د دے نعمتونو په لالچ کښے رانشی، نو د سزا ګانو د ویرے
نۀ لا ور بیا مومی ۔ نو د دوئ د پاره عذاب هم واوری

## ستاسو د عزت خاوند الله تعالیٰ فرمائی

یَآاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوْٓا اٰبَآءَکُمْ وَاِخْوَانَکُمْ اَوْلِیَآءَ

إِنِ اسْتَحَبُّوا الْكُفْرَ عَلَى الْإِيمَانِ ۚ وَمَنْ يَتَوَلَّهُمْ مِنْكُمْ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ ۝ (سورة التوبه ع ۳ پ ۱۰)

اے د ایمان خاوندانو! خپل پلاران او ورونړه دوستان مه جوړوئ که چرے دوئ خوښ کړی کفر لره او غوره کوی ئے په ایمان باندے، او په تاسو کښے کوم څوک دوئ سره دوستی کوی نو سخت ظالمان دی، د غه خلق۔

بیا فرمائی:۔

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا عَدُوِّي وَعَدُوَّكُمْ أَوْلِيَاءَ (الی قوله تعالیٰ) تُسِرُّونَ إِلَيْهِمْ بِالْمَوَدَّةِ وَأَنَا أَعْلَمُ بِمَا أَخْفَيْتُمْ وَمَا أَعْلَنْتُمْ ۚ وَمَنْ يَفْعَلْهُ مِنْكُمْ فَقَدْ ضَلَّ سَوَاءَ السَّبِيلِ ۝ (الی قوله) لَنْ تَنْفَعَكُمْ أَرْحَامُكُمْ وَلَا أَوْلَادُكُمْ ۚ يَوْمَ الْقِيَامَةِ يَفْصِلُ بَيْنَكُمْ ۚ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ۝

(سورة ممتحنه ع ۱ پ ۲۸)

اے د ایمان خاوندانو! زما او خپل دښمنان د خان دوستان مه جوړوئ۔ تاسو په پټه دوئ سره دوستی کوئ او زهٔ پوهیږم په هغه کار چه تاسو ئے پټوئ یا ئے ښکاره کوئ، او په تاسو کښے هر څوک چه دا کار کوی۔ نو ورکه ئے کړه صحیح لار۔ (د اسلام) ستاسو رشتے او ستاسو اولاد تاسو ته هیڅ نفع نشی رسولے۔ د قیامت په ورځ به



تاسو او ستاسو د دوستانو په منځ کښے جدائی راولی په تاسو کښے هیڅوک د یو بل پکار رانشی۔ او الله ستاسو د هر عمل لیدونکے دے۔

بیا فرمائی:۔

وَمَنْ يَتَوَلَّهُمْ مِنْكُمْ فَإِنَّهُ مِنْهُمْ ۗ إِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ ۝

(سورة ممتحنه پ ۲۸ - ع ۷)

او هغه څوک چه په تاسو کښے د دوئ سره دوستی او کړی نو بیشکه دے د هغوئ نه دے، بے شکه الله ظالمانو ته هدایت نه کوی۔

په مخکښنو دوه آیاتونو کښے ئے د دوئ سره دوستی کوونکو ته ظالمان او ګمراهان ونیلی دی، او په دے آیت کښے ئے بالکل صفا خبره او کړه چه څوک د دوئ سره دوستی ساتی هغه هم د دوئ نه دے، او د دوئ په شان کافر دے، د دوئ سره به په یوه رسئ تړلے کیږی هغه کوره هم یاده وساتی چه تاسو پټه پټه له دوئ سره محبت ساتئ، او زهٔ ستاسو په هره خبره عالم یم او د هغه رسئ متعلق هم واؤرئ چه په هغه کښے به د حضورِ اقدس صلی الله علیه و آله وسلم ګستاخان او بدګویه تړلے شی۔ والعیاذ بالله

## ستا سو ربّ جلّ جلالهٗ فرمائی :-

وَالَّذِیْنَ یُؤْذُوْنَ رَسُوْلَ اللّٰهِ لَهُمْ عَذَابٌ اَلِیْمٌ ۝
(سورۃ التوبہ ع ۱۳ - پ ۱۰)

او څوک چه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ضرر رسوی
نو دوی د پاره دردناک عذاب مقرر دے.

بیا فرمائی :-

اِنَّ الَّذِیْنَ یُؤْذُوْنَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ لَعَنَهُمُ اللّٰهُ فِی الدُّنْیَا وَالْاٰخِرَةِ
وَاَعَدَّ لَهُمْ عَذَابًا مُّهِیْنًا ۝ (سوره احزاب ع ۷ پ ۲۲)

بے شک څوک چه الله او د هغه رسول ته ضرر رسوی په هغوی د
خُدائے لعنت دے په دنیا او آخرت کښے او الله تعالٰی تیار کړے
دے، دوی لره عذاب سپکونکے (او د رسوائی عذاب / چه دوی
به سپک او رسوا کړی.) الله تعالٰی د ضرر رسیدو نه پاک دے.
هیڅوک ورته ضرر نشی رسولے مگر د خپل حبیب صلی الله علیه
وسلم په شان کښے نے گستاخی کولو نه خپل ضرر او وے، په دے
آیاتو کښے چه څوک د الله د رسول د د ښمنانو سره محبت ساتی
نو اوده کوړے نے ورله ثابتے کړے :- (۱) چه ظالم دے
(۲) گمراه دے (۳) کافر دے (۴) د دوی د پاره دردناک عذاب



(۵) دے به په آخرت کښے خوار او ذلیل شی (۶) د الله واحد
قهار ته ضرر او رسولو (۷) په ده باندے په دواړو جهانو
کښے لعنت دے. (والعیاذ بالله تعالٰی)

اے مسلمانه! اے د پیر بابا د بنیاد مو د
سردار صلی الله علیه وسلم اُمتی، د خدائے د پاره انصاف
او کړه. آیا دا او ده کار ونه بنه دی چه د خدائے او د رسول
د د ښمنانو نه په تعلق ختمولو حاصلیگی چه په ذړه کښے به دې
ایمان محکم شی، الله به د مدد گار شی، جنت به دې مقام شی.
د الله په دلی کښے به حساب شے. مراد ونه به دے پوره شی.
خدائے به ستا نه راضی شی، او ته به د خدائے نه راضی شے.
او که نه دا او ده غوره دی چه د خدائے د رسول د د ښمنانو سره
محبت کولو باندے سړی ته حاصلیگی، چه ظالم، کافر، جهنمی
شے، آخرت کښے به ذلیل شے، خدائے پاک ته ضرر رسوئے،
خدائے به در باندے په دواړه جهانه لعنت لیږی، دا دیره
لوے خبره ده، دا ډیره لوے ده، څوک ویلے شی چه دا او ده
خبرے نه دی، او څوک ویلے شی چه هغه او ده خبرے د...
پرنیخو دوری. مگر خوږه ورو ره! خالی دا دنیا په کار نه
راځی، هلته به خوامخوا امتحان اغستے کیږی. پیشی به کیږی
روس دے آیاتو نه واوریدل. اَلٓمّٓ اَحَسِبَ النَّاسُ

وي په دې به خلاص شي چه صرف په ژبه ايمان راوړي او څه امتحان به نه اخستې کيږي.

## هو دا د امتحان وخت دے

ګوره! الله تعالیٰ طرفته ستاسو واپس کيدل دي، ګوره! په خپله فرمائي چه د قيامت په ورځ ستاسو خپلوئ او تعلقات په کار نه راځي. چه زما سره تعلقات ختم کړے، نو چا سره به دے جوړ وے؟ ګوره! په خپله فرمائي: چه زهٔ غافل نه يم، زهٔ ناخبره نه يم، ستاسو اعمال وينم، ستاسو خبرے اوردم. ستاسو د زړهٔ په احوالو پوهيږم. ګوره بے پروائي مهٔ کوه. ځان د پاره خپل انجام مهٔ خرابه وه. د الله او د رسول صلی الله عليه وسلم په مقابله کښے د ضد نه کار مهٔ اخله: ګوره! الله تاسو د خپل عذاب نه ويروي، د دهٔ د عذاب نه څهٔ ځائے د پناه هم نشته. ګوره! دے تاسو خپل رحمت طرفته غواړي، او د الله د رحمت نه بغير زمونږه څه ګذاره نشته، ګوره! ګناهونه اګر که ډير لوے ګناهونه وي، چه د هغے په کولو سره پورے د عذاب مستحق کيږي، ليکن ايمان ترے نه نه ځي. په عذاب به شي. او کيدے شي چه د الله د رحمت او د حبيب شفاعت



په وجه او بښلے شي، او په عذاب نشي. مګر د محمد صلی الله عليه وسلم د تعظيم مقام دے د دے په عظمت او محبت د ايمان دارومدار دے، د قرآن مجيد آيا تونه دے وا اورېدل، چه څوک په دے معامله کښے کے اوکړي. نو په هغه باندے دواړه جهانه کښے لعنت دے، ګوره! چه کله ايمان لاړ شي، نو بيا هميشه هميشه د پاره هرګز هيڅ وخت د عذاب نه خلاصيدل نشته د ګستاخئ کوونکي لحاظ کښ تهٔ دلته اوکړے، هلته به په خپل عذابونو او سختو کښے وي. ستا هيڅ کيدل پکښے بيا نشته. په هغے سختے کښے به تهٔ هم راشے. هغه تا نشي خلاصولے، نه تهٔ د هغهٔ د خلاصئ د پاره تلے شے، او که لاړ شے نو څهٔ کولے شے بيا د داسے خلقو لحاظ کول او خپل ځان هميشه هميشه د پاره د الله په غضب او د اور په عذاب کښے غورځول څهٔ د عقل خبره نه ده. خدائے د پاره، خدائے د پاره، نور وخت د پاره د الله او د رسول نه سوا ټولو نه نظر اوچت کړ او سترګے بندے کړ، او ګردن خکته کړ. خپل ځان د الله تعالیٰ په دربار کښے حاضر اوګڼړه، او په خالص او رښتيني اسلامي زړهٔ سره د محمد رسول الله صلی الله عليه وسلم لوئے عظمت او لويه مرتبه بلند رتبه چه الله تعالیٰ ورله ورکړے ده او د هغے په تعظيم او د هغه په عزت باندے د اسلام بنياد ايښے دے. په دے زړهٔ مضبوط کړه او د انصاف

او ایمان په خاطر او دا یې چه آیا که چا دا خبره او کړه، چه[1] د
د شیطان د علم فراخوالے په نص سره ثابت دے د فخر عالم دَ
علم فراخی په باره کښے کوم یو نص قطعی راغلے دے۔ نو دهٔ دَ
محمد صلی اللّٰه علیه وسلم په شان کښے گستاخی او نکړه، دهٔ د شیطان
لعین علم د محمد رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه وسلم په علم اقدس
باندے او چت نکړو۔ آیا دے د حضور اکرم صلی اللّٰه علیه وسلم
دَ وسعت علم نه کافر نشو۔ او شیطان په وسعت علمی باندے
ئے ایمان رانه وړو۔ ؟

مسلمانانو :۔ په خپله دے بد گویه او گستاخ ته دومره
او وایئ چه، ته په علم کښے دَ شیطان برابر یئ، نو دے به ئے
او گڼړی یا نه حالانکه تا خو علم کښے شیطان نه کم او نه ئے وے
بلکه د دهٔ علم ئے دَ شیطان برابر کړو، نو بیا وے کم ویلے توهین
نه دے، او که چرے دے په دے خبره باندے خفگان ښکاره
نکړی: اگر کس په زړهٔ کښے ئے نشی برداشت کولے، نو دے
پریږدی چه ته دَ لوے سړی نه تپوس او کړئ او کس پوره
اذمیښت کول غواړئ نو آیا کس خوک کچوی ته لاړ شی، نو

[1] د دے عبارت او د و الفاظ دا دی: "کہ شیطان کی یہ وسعت نص سے ثابت ہوئی، فخر عالم کی وسعت علم کی کونسی نص قطعی ہے"



یو حا کم ته دا قسم الفاظ وائی نو خو مرو سپکاوے دے، گوری اوس به معلوم شوه۔
چه دا قسم الفاظ توهین او سپکاوے دے او ضرور دے، او
یقینی دے۔ بیا دا او وائی چه دَ حضور صلی اللّٰه علیه وسلم سپکاوے
کول دے کفر نه دے؛ ضرور کفر دے او یقینی دے نو آیا
چا چه دَ شیطان وسعت علم په نص سره ثابت کړو او د رسول
اللّٰه صلی اللّٰه علیه وسلم وسعت علم د پاره ئے قول نصوص رد
کړل او دیو شرک ئے ثابت کړو، او که او وائی چه شرک نه دے
نو د کوم یو ایمان حصه دهٔ۔ آیا دَ ابلیس لعین د خدائے تعالیٰ
شریک او منو او کنه، ضرور ئے او منو چه کوم خبره په مخلوق
کښے د چا د پاره ثابتول شرک دی نو هغه په مخلوق خدا کښے چه
چالے ثابته شی نو شرک وی ځکه چه دَ خدائے شریک هیڅوک
نشی جوړیدے۔ هر کله چه رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه وسلم لره
وسعت علم ثابتول شرک شو چه په دے کښے هیڅ دَ ایمان
حصه نشته نو ضرور دا وسعت علم به بیا د اللّٰه تعالیٰ یو
خاص صفت شی چه دَ خدائے سره به لازم وی نو چه کله دَ
دغے صفت پیغمبر لره منلو باندے سړے مشرک کیږی نو
دهٔ پخپله دغه وسعت، دغه صفت په خپله خوله باندے ابلیس
لره ثابت کړو نو بالکل ئے شیطان صفا د خدائے سره شریک
کړو۔ مسلمانانو ! آیا دا دَ خدائے او دَ دهٔ دَ رسول توهین

نه شو، ضرور شو، دَ الله توهین خو ښکاره دے چه شریک ئې ورسره جوړ کړی او هغه هم څوک؟ ابلیس لعین! او د رسول الله صلی الله علیه وسلم توهین داسے شو چه دَ ابلیس مرتبه ئې په دوی باندے اوچته کړه. چه ګنی شیطان دَ الله په یو خاص صفت کښے حصه دار دے او پیغمبر ترے داسے محروم چه ثابتول ئې ورله شرک ګنړی.

مسلمانانو! آیا دَ خدائے او دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم توهین کوونکے کافر نه دے، ضرور دے. آیا چا دا خبره کړے ده[1] چه دَ دے نه بعض غیبی علمونه مراد دی، نو دے کښے د حضور صلی الله علیه وسلم څه تخصیص دے داسے علم خو زید و عمرو بلکه هر ماشوم او لیونی بلکه ټولو ځناورو او حیواناتو له هم حاصل دے. آیا دَ محمد صلی الله علیه وسلم ته ښکاره کنځل او نکړل. آیا نبی کریم صلی الله علیه وسلم له دومره علم ورکړے شوے دے چه هغه هر یو کل او هر چارپائے له هم حاصل دے.

مسلمانه! مسلمانه! اے دَ محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم

[1] دا دے عبارت داسے دے "بعض علوم غیبیه مراد ہیں تو اسمیں حضور صلی الله علیه وسلم کی کیا تخصیص ہے ایسا علم تو زید و عمرو بلکہ ہر صبی و مجنون بلکہ جمیع حیوانات و بہائم کے لئے بھی حاصل ہے"!



اُمتی! دَ خپل دین او دَ ایمان خاطر او که، ووایه ته دے ناپاک لعنتی کنځلو کښے چه ښکاره کنځل دی دَ دے په کنځل کید و کښے څه شک کوے. معاذ الله، ستا زړه نه به دَ محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم عظمت او احترام داسے او ځی چه دَ هغه په شان کښے داسے سخت کنځل هم توهین او نه ګڼړے او که بیا دے هم یقین نه راځی نو په خپله دے بد ګویانو خلقو نه تپوس او که. خیال او که آیا تا ته یا ستا استاذانو ته یا پیرانو ته که داسے ووئیلی شی چه اے فلانیه ستا دومره علم دے چه څومره دَ خنزیر علم دے یا استاذ دَ استاد دومره علم دے څومره چه د سپی علم دے، ستا دَ پیر علم دومره دے څومره چه دَ خر، ګوګلی یا د سپی، خنزیر علم دے، نو آیا کوره ته په دے کښے خپل او دَ پیر استاد سپکاوے وینے او که نه. یقینی ئې وینے او که دغه برداشت کړے او څه غصه درپسے ظاهره نه کړے نو بے غیرته به شے. یعنی یقیناً به ته هغه برداشت نه کړے شے. نو بیا څه وجه ده چه کومه خبره دَ دوی په حق کښے دګستاخی او دوی دَ شان نه مخالف دی او دَ محمد صلی الله علیه وسلم توهین او سپکاوے نه وی ولے معاذ الله دَ دوی شان دَ پیغمبر د شان نه اوچت وے ولے دوی ته نوم ایمان دے، ماشاء الله ماشاء الله صد افسوس دے. آیا چا چه دا خبره لیکلے

دا چه :-

سله څکه هر سړی ته خامخا دا سې یو خبرې علم وی

چه بل چا ته د هغې پته نۀ وی او پټ وی تر ے نو پکار دی

چه هر چا ته عالم الغیب او وئیلے شی بیا که څوک زید دَ دې

خبرې قابل شی چه هر څوک عالم الغیب دے نو بیا علم غیب

دَ پیغمبرۍ دَ کمالاتو نه ولے شمار لے کیږی چه په کوم کار کښې دَ

پیغمبر یا دَ بل یو انسان خصوصیت نۀ وی نو هغه کله دَ پیغمبرۍ

کمال کیدے شی او که څوک دا التزام او نه کړے شی، نو

نبی او غیر نبی په مینځ کښې دَ فرق کولو وجه بیان کول ضروری

دی۔ انتهیٰ :- ولے رسول الله صلی الله علیه وسلم

او دَ ځناورو په مینځ کښې فرق نه پیښ نۀ دو نکی حضور صلی الله

علیه وسلم ته تخلیٰ الا نه کړل، آیا دۀ دَ الله تعالیٰ دا صریح

---

له عبارت یۓ دا دے :- ہر شخص کو کسی نہ کسی ایسی بات کا علم ہوتا ہے، جو دوسرے

شخص سے مخفی ہے تو چاہیے کہ سب کو عالم الغیب کہا جائے پھر اگر

زید اس کا التزام کرلے کہ ہاں میں سب کو عالم الغیب کہوں گا تو پھر علم

غیب منجملہ کمالات نبویہ سے شمار کیوں کیا جاتا ہے جس امر میں مومن بلکہ انسان

کی بھی خصوصیت نہ ہو، وہ کمالات نبوت سے کب ہو سکتا ہے۔ اور

اگر یہ التزام نہ کیا جائے، تو نبی غیر نبی میں وجہ فرق بیان کرنا ضرور ہے۔



او پښکاره آیت باطل او رد نۀ کړو۔ کوری۔

## ستاسو خداوندِ کریم فرمائی :

وَعَلَّمَكَ مَا لَمْ تَكُنْ تَعْلَمُ ۚ وَكَانَ فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكَ

عَظِيمًا ۝ (سورہ نساء رکوع ۱۷ پ ۵)

اے خوږه حبیبه ! الله او ښودل تا ته هر هغه څیز دَ نه

چه ته پرے عالم نۀ وے او دَ الله فضل په تا ډیر لوئے دے۔

دلته الله تعالیٰ دَ نامعلومو خبرو علم را تلل دَ خپل حبیب

په صفتونو او کمالاتو کښې شمار کړل او بیا فرمائی :-

وَإِنَّهُ لَذُو عِلْمٍ لِّمَا عَلَّمْنَاهُ

(سورہ یوسف ع ۲ - پ ۱۳)

بے شکه حضرت یعقوب علیه الصلوٰة والسلام زمونږ

په ښودلی شوی علم باندے دَ علم خاوند وو۔ او بیا فرمائی :

وَبَشَّرُوهُ بِغُلَامٍ عَلِيمٍ (سورہ الذاریات ع ۱۹ پ ۲۶)

ملائکو په حضرت ابراهیم علیه الصلوٰة والسلام باندے

دَ یو علم والا خوے زیرے او کړو : بل ځائے فرمائی :-

وَعَلَّمْنَاهُ مِن لَّدُنَّا عِلْمًا (سورہ الکهف ع ۲۰ - پ ۱۶)

مونږ حضرت خضر علیه السلام له دَ خپل طرف علم ورکړے

دي. دا سې نور آيا تو نه الله تعالی علم د پيغمبرانو په کمالاتو کښې حساب کړو او س د زيد په څېر د الله نوم وا خلئ (يعنې عبارت مذکوره کښې) او د علم غيب په ځاى مطلق علم ذکر کړئ چه هر چارپائے لره ظاهري طور باندې حاصليدل شته. او گورئ دا بدگويه او د حضور صلی الله عليه وسلم گستاخ څنګه د الله تعالی د دې آيا تو نو رد کوي، يعنې دا... بدگويه د الله تعالی په مقابله کښې او دريږي او وائي چه که چرې نبي عليه الصلوٰة والسلام او نورو پيغمبرانو عليهم السلام په ذات مقدسو باندې د علم اطلاق کول که په قول د خدائے سره صحيح شي نو بيا دا تپوس کوو چه له دې نه بعض علوم مراد دي او که کل علوم؛ که بعض علوم مراد وي نو دې کښې د حضور او نورو پيغمبرانو څه تخصيص دې. دا سې علم خو زيد عمرو بلکه هر سړي او ليوني بلکه ټولو حيوانا تو او چارپايانو لره هم شته ځکه چه هر يو ته د څه نه څه علم دي نو پکار دي چه ټولو ته عالم او وئيلے شي. بيا که چرې خدائے پاک دې التزام اوکړي چه هر زره هر څه ته عالم وايم نو بيا علم منجمله د پيغمبرئ د کمالاتو نه ولے شمار شو چه په دې کښې مومن نه بلکه د انسان خصوصيت هم نشته. نو دا علم د پيغمبرئ د کمالاتو نه څنګه شمار شو او که دا



التزام او نکړي نو بيا د نبي او د غير نبي په منځ کښې فرق کول لازم دي. او که تمام علوم مراد وي په دې شان سره چه يو تن ترې هم خارج نه وي نو بيا د دې بطلان په دليل عقلي او نقلي سره ثابت دې. انتهٰى

پس معلومه شوه چه د الله تعالی دغه قول اقوال په دليل باندې باطل دي.

مسلمانانو! گورئ دې بدگويه صرف د محمد رسول الله صلی الله عليه وسلم گستاخي او نکړه او کنځل ئې او نه کړل، بلکه دده ورسره د الله تعالی کلام هم مردود او باطل کړو.

مسلمانانو! چه د چا زبردستي دې حد ته اورسي چه د رسول الله صلی الله عليه وسلم علم غيب د پاګلانو او څناورو سره برابر کړي او د ايمان او انسانيت سترګې بندې کړي او صفا او وائي چه د پيغمبر او څناورو په منځ کښې څه فرق دې نو بيا که د الله تعالی کلام رد کړي نو څه نا اشنا خبره نه ده. او دغه شان د الله تعالی کلام باطل کړي. شاته ئې او غورزوي د پښو لاندې ئې کړي بلکه دوئ چه دا هر څه کوي د الله تعالی د کلام سره نو حضور صلی الله عليه وسلم ته د کنځلو په زور ئې کوي. مګر هو د دوئ نه به خپله تپوس او کړئ چه ستا دا تقرير په خپله ستا او ستا د استاذانو

په حق کښې کيدے شي او که نه. که کيدے شي نو څهٔ جواب
دے. هودے بدګويانو خلقو ته او وايئ. آيا تاسو د خپل
تقرير په طور باندے څهٔ د محمد صلى الله عليه وسلم په
حق کښې جاري کړل نو تاسو په خپله د دے خبرے تپوس
کولو ستاسو په حق کښې اجازت ورکولے شئ چه تاسو
خپلو استاذانو وغيره ته د عالم فاضل، مولوي او د قسم
ملا ولے نسبت کوئ او حيوانانو ته لکه سپے خنځير وغيره، دوئ ته
خپلو الفاظو باندے ولے نسبت کوئ بيا سپي خنځير وغيره
ته ولے عالم، مولوي او فاضل نهٔ وايئ. او د دے نسبتونو
په وجه ستاسو تابعداران او شاګردان ولے ستاسو عزت کوي
لاس او پښے درله ښکلوي او د نورو خناورو سره ولے دا کار
نهٔ کوي لکه خر، ګوڼګے وغيره، د دے څهٔ وجه ده. کل علم خو
ستاسو استاذانو وغيره ته يقيناً نشته او بعض علم
کښې ستاسو او خناورو سپي، صبي اوليونو، خر او خنځير ته
هم شته. نو ستاسو په کښې څهٔ تخصيص راغے. نو پکار دي چه دے
خناورو ته هم عالم، فاضل مولوي او ويلے شي بيا که تاسو
دے التزام اوکړئ چه هودے ټولو ته علماء ويلے شي.
نو بيا علم ستاسو کمالاتو کښې ولے شمار شوے دے چه
په کوم شي چه مومن نه بلکه د انسان خصوصيت نه وي،



خر، سپي، خنځير ټولو ته حاصل وي نو هغه ستاسو کمالات
څنګه شو او که دا التزام او نهٔ کړئ، نو ستاسو د بيان مطابق
ستاسو او خر، سپي، خنځير، بدليوه په منځ کښې څهٔ فرق
دے. د فرق وجه بيانول لازم دي، ضروري دي. فقط.
مسلمانانو! چه دا تپوس تر دے اوکړئ نو صفا به معلومه
شي چه دے بدګويه ګستاخانو محمد صلى الله عليه وسلم ته څنګه
ښکاره کنځل اوکړل، او د رب ذو الجلال قرآن مجيد خلے
په ځائے ايا تو نه ئے څنګه رد او باطل کړل.
مسلمانانو! خاص کر د دے بدګويه او د دوئ د ملګرو
نه تپوس اوکړئ چه په دوئ باندے په خپله د دوئ په اقرار
سره د قرآن مجيد دا آيات چسپان کيږي، که نه؟

## ستاسو خداوند قدوس فرمائي:

وَلَقَدْ ذَرَأْنَا لِجَهَنَّمَ كَثِيرًا مِّنَ الْجِنِّ وَالْإِنسِ
لَهُمْ قُلُوبٌ لَّا يَفْقَهُونَ بِهَا وَلَهُمْ أَعْيُنٌ
لَّا يُبْصِرُونَ بِهَا وَلَهُمْ آذَانٌ لَّا يَسْمَعُونَ بِهَا ط
أُولَٰئِكَ كَالْأَنْعَامِ بَلْ هُمْ أَضَلُّ ط أُولَٰئِكَ هُمُ
الْغَافِلُونَ ٥ (سوره اعراف ع ۱۴ - پ ۹)

بے شکه موږ ډېر پیدا کړیدی دوزخ دَ پاره ډیر خلق
د پیریانو او د بنیادمو نه چه دَ دوئ زړونه دی پوهیږی
پرے نه. د دوئ سترگے دی لیدل پرے نشی کولے، دَ دوئ
غوږونه دی اوریدل پرے نشی کولے. دوئ دَ چارپایانو او
ځناورو په شان دی بلکه دَ دوئ نه هم زیات گمراه دی او
دا خلق غافل دی.

او فرمائی :-

اَرَأَیْتَ مَنِ اتَّخَذَ اِلٰهَهٗ هَوٰاهُ اَفَاَنْتَ
تَكُوْنُ عَلَیْهِ وَكِیْلًا ۝ اَمْ تَحْسَبُ اَنَّ اَكْثَرَهُمْ
یَسْمَعُوْنَ اَوْ یَعْقِلُوْنَ ۝ اِنْ هُمْ اِلَّا كَالْاَنْعَامِ
بَلْ هُمْ اَضَلُّ سَبِیْلًا ۝

(سورهٔ الفرقان ع پ ۱۹)

آیا ته وینے خلقو له چه خپل خواهشونه ئے دَ ځان
خدائے جوړ کړے دے ویلے تا دَ دوئ دَ هدایت ذمه
اخستے ده. یا ستا گمان دے چه دوئ کښے اکثر خلق
نصیحت اوری او عقل ئے هم شته، نه دی دوئ، مگر دَ
ځناورو په شان بلکه دَ هغوئ نه هم زیات گمراه دی.

دے بدگویانو خو دَ چارپایانو علم دَ انبیاء علیهم السلام
دَ علم سره برابر او منلو، او س دوئ نه تپوس او کړئ چه آیا



علم د انبیاوُ یا په خپله دَ حضور سید الانبیاء علیه الصلوٰة
السلام د علم برابر دے، ظاهراً خو دا دعوٰی نه کوی او
نه بیا هم او وائی خو چه دوی کله علم ئے دَ چارپایانو سره
برابر کړو نو دَ ده پښو والا سره برابر ول بیا څهٔ مشکل کار
دے. دا تپوس ترے او کړئ چه ستاسو په استاذانو، پیرانو
ملایانو کښے چرته داسے خلق تیر شوی دی چه تاسو
ترے علم کښے زیات یئ یا قول برابر یئ. آخر او به وائی:
نو فرق به دا او باسی نو دَ دوئ د غه استاد وغیره دَ دوئ دَ
قرار په بناء د چارپایانو دَ علم برابر شول او دوئ علم کښے
دَ هغوئ نه هم کم دی. چه په شاگردئ کښے یو تن دَ بل نه کم
وی نو دویم به ضرور کم وی نو دا بدگویه وهابیان دَ خپل
قرار مطابق دَ چارپایانو نه زیات گمراه شول او دا آیاتو نو پرے
صادق شول :

كَذٰلِكَ الْعَذَابُ ؕ وَلَعَذَابُ الْاٰخِرَةِ اَكْبَرُ ۘ
لَوْ كَانُوْا یَعْلَمُوْنَ ۝

(سورة ع ۱۵ پ ۲۴)

مسلمانانو! دا حالات خو دَ دوئ د کلمو او الفاظو دی.
چه کومو باندے انبیائے کرام او حضور سید الانام باندے
لاس پاک کړی وو. خو بیا دَ هغو عباداتو نو به څهٔ وایو کومو

کنځچه دَ ربِّ ذوالجلال په عزّت باندے حمله شوے ده
خدائے دَ پاره انسان ادکړی، آیا چاچه دا الفاظ لیا
" چه ما کله ویلی دی چه دَ الله تعالیٰ نه په دروغ
صادریدو سره زهٔ قایل نهٔ یم ۱ (یعنے دا سړے
دے قائل دے چه الله پاک دروغ وائی) او بیا په
دے غلط نسبت کولو باندے دا فتویٰ کووَلکے چه ۲
اګرکه دهٔ په تاویل دَ آیات کښے خطائی اوکړه مګر بیا هم دهٔ
ته کافر یا بدعتی ګمراه نشی ویلے او چا دا سے ویلی دی ۳
دهٔ ته سخت خبره کول هم پکار نهٔ ده، بعض چه دا
لیکلی دی چه دیکښے دَ محققو علماء کافر کیدل لازمیږی ۴
حنفی شافعی ته د ګمراهئ یا فسق نسبت نشی کولے
یعنے الله ته معاذ الله د دروغژن ویل دَ محققو علماء
مذهب دے۔ دا اختلاف د حنفی او شافعی په
شان دے، چالاس دَ نامه دَ پاسه لیکلو دل، یا

---

۱ میں نے کب کہا ہے کہ میں وقوع کذب باری کا قائل نہیں ہوں
۲ اگرچہ اس نے تاویل آیت میں خطاکی مگر تاہم اسکو کافر یا بدعتی خیال کرنا نہیں
۳ اسکو کوئی سخت کلمہ نہ کہنا چاہیئے۔
۴ حنفی شافعی پر طعن وتضلیل نہیں کرسکتا"



چالاندے لیکلو دل نو دَ دے په شان دا مسئله هم اوګڼه
چا خدائے پاک ته د ښتنے ویلے دے او چا دروغژن ۵
لهٰذا ددے ګمراهئ او دَ فسق دَ نسبت نه په امن کښے
[illegible] پکار دی یعنے که چا خداوند قدوس ته دروغژن
[illegible]ے نو دهٔ ته ګمراهی اوکړه تر دے چه ګنهګار هم نه دے
[illegible]ے چا چه دا قول اهو څه او ویل چه دے عبارتو نو کښے
[illegible] شول) دَ یو مکذب دَ پاره او ویل (چه الله ته دَ
[illegible] دروغو نسبت کووَلکے وو) او دلته په خپله دَ ځان د طرف
[illegible]ره دَ دے بے فائدے اقرار نه چه ۳ قدرت علی الکذب
[illegible] دَ امتناع د وقوع نه مسئله اتفاقیه ده۔ بنهٔ بیشکاره ګے
[illegible] ویل چه دَ دروغو واقع کیدو معنیٰ صحیح ده یعنے دا خبره
[illegible] ده چه الله تعالیٰ دروغ وائی۔ ولے دا سړے مسلمان
[illegible] کیدے شی۔ آیا څوک چه دهٔ ته مسلمان وائی هغه
مسلمان کیدے شی؟ مسلمانانو دَ خدائے دَ پاره انصاف
[illegible] ایمان نوم دَ تصدیق دے او دَ تصدیق مخالف څه شے دے،
[illegible]کذیب دَ تکذیب څه معنیٰ ده دَ چا طرفته دَ دروغو نسبت کول

---

[illegible] اردو عبارت دا دے ۵ لهٰذا ایسے کو تضلیل و تفسیق سے مامون کرنا چاہیئے
۶ قدرت علی الکذب مع امتناع الوقوع مسئلہ اتفاقیہ ہے

چې کله په ښکاره الفاظو سره الله پاک ته دروغژن وائي بیا هم
ایمان باقي وي نو خدائے پوهه دے (مونږ ته نه پوهیږو) چې
ایمان د کوم ځناور نوم دے. خدائے پوهیږي چې یهود نصاریٰ
او هندوان په څه کافر دي. چې دوئ کښې هیڅوک صفا صفا
خپلو معبودانو ته دروغژن هم نه وائي صرف دومره چې معبود
برحق کلام باندے نه پوهیږي او مني ئې نه داسے په دنیا کښې
هیڅ یو کافر نشته. چې خدائے، خدائے نه مني یا د ده کلام د ده
کلام نه ګڼړي او بیا بے د سوچ او بغیر د څه ویرے نه وائي.
چې د خدائے کلام دروغ دے، ددے نه د کذب د واقع کیدلو
معنیٰ صحیح شوه. غرض دا چې هیڅ یو د انصاف خاوند شک
نشي کولے چې دے نوکو بدګویو خلقو په خپله پلیته خوله الله اود
ده رسول ته کنځل اوکړل. اوس دا وخت د الله د امتحان
دے، د یو قهار جبار خدائے جل جلاله نه ویریږئ او کوم آیاتونه
چې ښکنځل ذکرشول ځانته ښکنځل کړئ او عمل پرے اوکړئ، اوس به
ستاسو ایمان، ستاسو زړونو کښې ددے ګستاخ خلقو نه سخت نفرت
پیدا کړي او هیڅرے به تاسو د الله او د رسول الله صلی الله علیه و
سلم مقابله کښې د دوئ حمایت او امداد کولو ته پریږدي نه دي
تاسو ته به له دوئ نه کرکه راځي.

الله د پاره انصاف اوکړئ. که چرے یو سړے ستاسو مور پلار



ته یا پیر استاذ ته کنځل اوکړي او زباني هم نه بلکه ورته لیکي - او
چهاپ ئې کړي ورپسے آیا ته د هغه ملګرے شئ، دوستي به ورسره
کوئے، یا د ده خبرو د پاره به غلط غلط تاویلونه جوړوے یا د ده
خبرو ته به بے پروا اوسے او په خپل دستور به ځان صفا ساتے.
نه نه هیڅ کله به داسے اونکړے که چرے تا کښې انساني غیرت
انساني حمیت د مور پلار عزت، حرمت، او عظمت څه نوم نشان
دی. نو د دے بدګویه نه به د کنځل کوونکي پشان نفرت کوے، د
ده له سوري نه به لرے تښتے، د ده نوم چې واورے نو سخته غصه
او قهر به درځي چې څوک د ده له پاره څه د ځانه بناوټي کوي
نه به د هغه دښمن هم شے نو بیا خدائے د پاره مور پلار به یوه
چاپیري کښې کیدوه او د الله واحد قهار او د محمد رسول الله
صلی الله علیه و سلم عزت، عظمت او ایمان په دویم چاپیري کښې
کیدوه. که مسلمان ئې نو د مور پلار عزت او د الله او د رسول
د عزت سره به ئې هیڅ نسبت او نه فرق، د مور او پلار عزت
او محبت به د الله و رسول د عزت او محبت په مخکښې هیڅ نه ګڼې
نو په تا واجب، واجب، واجب لاکهه لاکهه ځله به په تا واجب وي
چې د دے بدګویه او ګستاخانو نه به ځان همیشه د پاره د نفرت
په جوړ سره ویرے ساتے چې د مور پلار کنځل کوونکي سره
ددے زرمه (۱۰۰) حصه هم برابر نه دي. دا هغه خلق دي چې

چه دوی د پاره د هغه او د هغو نعمتونو نیږے شوے دے۔

مسلمانانو! ستاسو د پاره دالکړ درے خیرخواه امید ساتی
چه د الله واحد قهار د دے آیاتونو او د دے کافی شافی بیان او
واضح مثلو او دلائلو نه پس د دے په باره کښے د دے نه زیات
عرض کولو ته حاجت پاتے نه دی ستاسو ایمان به په خپله
د دے بدګویونه ښه پاک مبارک په اوچت آواز سره اوائی:
او د دوی نه به پاخی۔ رب ذی الجلال قرآن عظیم کښے تاسو ته
ښودلو د پاره د ابراهیم علیه السلام نه نقل فرمائیلے دے۔

## ستاسو رب جل شانه فرمائی

قَدْ كَانَتْ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ فِي
إِبْرَاهِيمَ وَالَّذِينَ مَعَهُ إِذْ قَالُوا لِقَوْمِهِمْ إِنَّا
بُرَآءُ مِنْكُمْ وَمِمَّا تَعْبُدُونَ مِنْ دُونِ اللهِ كَفَرْنَا
بِكُمْ وَبَدَا بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةُ وَالْبَغْضَاءُ أَبَدًا
حَتَّى تُؤْمِنُوا بِاللهِ وَحْدَهُ (الی قوله تعالی) لَقَدْ
كَانَ لَكُمْ فِيهِمْ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِمَنْ كَانَ يَرْجُو اللهَ
وَالْيَوْمَ الْآخِرَ وَمَنْ يَتَوَلَّ فَإِنَّ اللهَ هُوَ الْغَنِيُّ
الْحَمِيدُ (سورة الممتحنة ع پ ۲۸)



بے شک ستاسو د پاره حضرت ابراهیم علیه السلام او د
هغوی سره مسلمانانو کښے ښه اقتدا ده. هر کله چه دوی خپل
قوم ته اووئیل، موږ ه تاسو نه جدا یو او د هغه څیزونو نه
چه تاسو ئے د خدائے نه سوا عبادت کوئ. موږه ستاسو نه
منکر یو او ظاهره شوه، زموږ ه او ستاسو په مینځ کښے دښمنی
چه خو پورے تاسو ایمان نه وی راوړے، بے شک ضرور تاسو
له په دوی کښے ښه اقتدا ده هغه چا د پاره چه د الله پاک
او د آخرت د ورځے امید ساتی (او چه څوک له دے نه واوړی
(او شا کړی ورته) نو الله تعالی بے پروا دے، او صفت ئے
شوے دے۔

یعنے الله تعالی تاسو ته فرمائی چه څنګه زما خلیل (دوست)
ابراهیم او د هغه سره چه کوم مسلمانان وو هغوی او کړل چه
زما د پاره د خپل قوم صفا دښمنان شول او تعلقات او جماعتونه
(ډلے) ئے پریښودل او جدائی ئے ترے اختیار کړه او پهلواو
او آزادی سره ئے اووئیل چه زموږ ه تاسو سره هیڅ تعلق
نشته، موږ ه تاسو نه یقیناً جدا یو تاسو له هم دا سے کار کول
پکار دی که تاسو او منله دا خبره نو ستاسو خیر دے په کښے۔
او که مو او نه منله نو الله تعالی ستاسو هیڅ پروا نه لری څنګه
چه دوی زما دښمنان شوی دی، د غه تاسو هم سخی زه

د تول جهان نه بې پروا يم او تولو صفتونو باندې موصوف
يم. جل وعلا شانه.

## دا خو د قرآن عظيم احکام وو

الله تعالىٰ چه د چا د پاره بهتر وانے او غواړي، نو
هغې باندې ورله د عمل کولو توفيق ورکړي مګر دلته دوه
فرقې دي چه هغوئ ته په دے احکامو کښے عذر ځکښے راځي
اول بے علمه نادانه - !

د دوئ عذر په دوه قسمه دے - اول عذر دا دے چه
فلانے سړے زما استاد يا بزرګ يا مشر يا دوست دے.
ليکن د د دے جواب خو دے قرآن مجيد کښے تير شو..
آيا تو نو کښے دا ورېدلي چه رب ذو الجلال فرمائي چه که د
عذاب الٰهي نه بچ کيدل غواړے نو دے معامله کښے د
خپل پلار رعايت هم مه کوه.

دويم عذر دا دے چه دے وائي صاحب، دا بډ کوي
سړے هم خامخا مولوي دے اوس که مولیانو ته کافر دے
او که مسلمان ؟

نو د دے جواب



## ستاسو الله تبارک وتعالىٰ فرمائي:

اَفَرَءَيْتَ مَنِ اتَّخَذَ اِلٰهَهٗ هَوٰىهُ وَاَضَلَّهُ اللّٰهُ
عَلٰى عِلْمٍ وَّخَتَمَ عَلٰى سَمْعِهٖ وَقَلْبِهٖ وَجَعَلَ عَلٰى بَصَرِهٖ
غِشٰوَةً ؕ فَمَنْ يَّهْدِيْهِ مِنْۢ بَعْدِ اللّٰهِ ؕ اَفَلَا
تَذَكَّرُوْنَ ؕ (سورة الجاثية ع ١٩ پ ٢٥)

آيا پس وينے ته هغه چا لره چه خپل خواهش ئے خپل
خدائے جوړ کړے دے او ګمراه کړے دے. دغه لره الله تعالىٰ
سره د علم نه او مهر ئے لګولے دے په غوږونو او زړه د ده
باندې او پيدا کړے ئے د ده ستر ګو د ده باندې پرده. پس څوک
به هدايت او کړي ده ته پس د الله تعالىٰ نه. آيا تاسو نصيحت
نه قبلوئ

بيا فرمائي:-

مَثَلُ الَّذِيْنَ حُمِّلُوا التَّوْرٰىةَ ثُمَّ لَمْ يَحْمِلُوْهَا
كَمَثَلِ الْحِمَارِ يَحْمِلُ اَسْفَارًا ؕ بِئْسَ مَثَلُ الْقَوْمِ الَّذِيْنَ
كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ ؕ وَاللّٰهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ ۝
(سورة الجمعة ع ١ پ ٢٨)

مثال د هغه چا چه توريت ئے اخستے دے او بيا

پرے عمل نہ کوی پہ شان دَ خر دے چہ بار کړی کتابونو لره (او هیځ فائده نہ ورکوی) دیر بد دے مثال دَ هغه قوم چہ نسبت دَ دروغو کوی آیاتونو دَ الله تہ ۔ او الله تعالیٰ هدایت نہ کوی قوم ظالمانو تہ ۔

او بل ځائے فرمائی :۔

وَاتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَأَ الَّذِي آتَيْنَاهُ آيَاتِنَا فَانْسَلَخَ مِنْهَا فَأَتْبَعَهُ الشَّيْطَانُ فَكَانَ مِنَ الْغَاوِينَ ۝ وَلَوْ شِئْنَا لَرَفَعْنَاهُ بِهَا وَلَٰكِنَّهُ أَخْلَدَ إِلَى الْأَرْضِ وَاتَّبَعَ هَوَاهُ ۚ فَمَثَلُهُ كَمَثَلِ الْكَلْبِ ۚ إِنْ تَحْمِلْ عَلَيْهِ يَلْهَثْ أَوْ تَتْرُكْهُ يَلْهَثْ ۚ ذَٰلِكَ مَثَلُ الْقَوْمِ الَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا ۚ فَاقْصُصِ الْقَصَصَ لَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُونَ ۝ سَاءَ مَثَلًا الْقَوْمُ الَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا وَأَنْفُسَهُمْ كَانُوا يَظْلِمُونَ ۝ مَنْ يَهْدِ اللَّهُ فَهُوَ الْمُهْتَدِي ۖ وَمَنْ يُضْلِلْ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْخَاسِرُونَ ۝

(سورة الاعراف ع ۱۳ پ ۹)

بیان کہ دوئی تہ قصہ دَ هغہ کس چہ ورکړی وو ورلہ مونږ خپل آیاتونہ (علم) دے دَ هغے نہ او وتلو نو ورپسے شو شیطان پس شہ د سرکشونہ او گمراه شو



او کہ زمونږ خوښہ شوے وے نو مونږ بہ او چت کړے وے پہ دے علم سره، او لیکن ښکتہ شو مزکے تہ او تابعدار شو دَ خپل خواهش ۔

نو د دہٗ مثال لکہ دَ سپی شو کہ تہ پرے څہ بوج اچوے یعنی څہ ورتہ وائے نو هم ځاپی او کہ څہ ورتہ نہ وائے نو هم ځاپی۔ داحال دَ هغہ قوم دے چہ نسبت دَ دروغو کوی زمونږ آیاتونو تہ. پس بیان کہ زما ارشاداو حکمونہ ئیکی چہ دوئ فکراوکړی بد دے مثال د هغہ قوم چہ نسبت د دروغو کوی آیاتونو زمونږ تہ او خپل نفسونو باندے ظلم کوی هغہ چاتہ چہ الله تعالیٰ هدایت اوکړی نو هغہ لاره موندونکے دے او څوک چہ گمراه کړی نو دا خلق زیان کاره دی (نقصان کښے وی) یعنی هدایت څہ پہ علم نہ دے دَ الله پہ اختیار کښے دے، دا آیاتونہ دی او حدیثونہ چہ کوم د گمراهہ عالمانو پہ مذمت (بدئ) کښے راغلی دی نو دَ هغے شمار نشتہ. تر دے پورے چہ یو حدیث کښے راغلی. چہ دَ دوزخ فرښتے بہ اول دا خلق نیسی، دوئ بہ او وائی چہ تاسو مونږه د بت پرستو نہ هم مخکښے نیسئ،

جواب بہ ورتہ اوشی. لیس من یعلم کمن لا یعلم عالم او بے علمہ برابر نہ دی۔ دا حدیث طبرانی پہ معجم کبیر کښے او ابونعیم پہ حلیہ کښے د حضرت انس رضی الله تعالیٰ عنہ

په روایت نقل کړے دے چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی:-

رونړو! د عالم عزت په دے وجه کیږی چه دا د پیغمبر وارث دی او د نبی وارث هغه دی چه په سمه لار روان دی۔ او چه کله په ګمراهئ کښے دی نو د نبی وارث نه بلکه د شیطان وارث دے. نو دے وخت کښے د ده تعظیم د پیغمبر تعظیم دے او که د شیطان وے او س دے وخت کښے د ده تعظیم د شیطان تعظیم دے۔

دا هغه صورت کښے دے چه کله یو عالم د کفر نه لاندے درجه ګمراهئ کښے وی، لکه د بد مذهبو عالمانو، بیا د هغه علماؤ به څه وے چه په خپله په سخت کفر کښے وی دوی ته عالم دین وئیل هم کفر دے لا بیا چه عالم دین ئے او مني او تعظیم ئے کوے

رونړو! علم هغه وخت کښے نفع ورکوی چه د دین سره وی- ورنه پښت پاپا دریان وے په خپله عالمان نه وی څه ابلیس خومره لوئے عالم وو وے څوک مسلمان به د علم په وجه د شیطان تعظیم اوکړی، دهٔ (شیطان) ته خو به ئے د ملائکو استاذ وے یعنې فرښتو ته به ئے علم ښودلو خو کله چه دهٔ د محمد صلی الله علیه وسلم تعظیم نه مخ واړولو، او د حضور[1] صلی الله علیه وسلم نور ته چه د آدم علیه السلام په تندی مبارک

---

[1] تفسیر کبیر امام فخر الدین رازی ج ۳ ص ۲۵۵ لاندے دا آیت ←



کښے ایښودے شوے وو، هغهٔ ته ئے سجده اونکړه نو د هغه نه د لعنت ابدی زنځیرئے په غاړه شو او ګوره د ده به شاګردان د ده سره څه سلوک کوی، همیشه پرے لعنت لیږی. هره رمضان شریف کښے تو له میاشت ئے په زنځیرونو کښے بند په بند تړلے دی د قیامت په ورځ به ئے را کاږی او جهنم ته به ئے دیکه کړی، دے ځائے نه د علم جواب هم واضح شو او د استاذئ هم-

رونړو! کروړ کروړ افسوس دے د هغے مسلمانئ دعوے کوونکی باندے چه د الله واحد قهار او د محمد سید الابرار صلی الله علیه وسلم نه زیات خپل استاذ له مرتبه ورکوی او ګستاخی او بدګوئی برداشت کوی- د الله او د رسول نه زیات د رور یا دوست یا دنیا کښے د چا سره محبت وی—

---

← تلک الرسل فضلنا ان الملائکة امروا بالسجود لآدم لاجل ان نور محمد صلی الله علیه وسلم فی جبهة آدم تفسیر نیشاپوری ج ۳ ص ۲ سجود الملائکة لآدم انما کان لاجل نور محمد صلی الله علیه وسلم الذی کان فی جبهته، د دواړو عبارتونو حاصل دا دے چه د فرښتو سجده کول آدم علیه السلام ته دے د پاره وو چه د دهٔ په تندی مبارک کښے د محمد مصطفیٰ صلی الله علیه وسلم د نور ښیده- ۱۲ منه-

یاربه! مونږ ته د خپل حبیب په خاطر ایمان راکړې.
صلی الله علیه وسلم امین ه

## دویمه ډله :-

معاندان او د دین دښمنان چه په خپله د دین د فخر دیانو نه انکار کوی او ښکاره کفر اوکړی، د خپل ځان نه د کفر نوم لرې کوی. د اسلام او قرآن او خدائے رسول او ایمان سره توقے کوی. او د اغوا سرکشئ او دهوکے او خلقو له فتنه کښے غورزولو د پاره داسے خبرے جوړوی چه کله به د فخر دیانو د دین د قید او پابندئ نه خلاص شو او آزاد به شو، او د اسلام به لکه د طوطی په شان صرف په ژبه کلمه ویل کله پاتے شی او بس کله وایه، نو د چه د څه خوښه وی کوه ے، که الله تعالٰی ته دروغژن وائے او که رښتیا او که خوښه د وی نو پیغمبر ته ښکنځل هم کوه. اسلام به هیڅ شکل سره نشی تلے. بَلْ لَعَنَهُمُ اللّٰهُ بِكُفْرِهِمْ فَقَلِيلًا مَّا يُؤْمِنُونَ ۝ دا د مسلمانانو دښمنان، د اسلام دښمنان، عوام ګمراه کولو او واحد قهار د دین بدولو د پاره یو شو شیطانی فریبونه مخکښے کوی.

**دریم فریب او مکر :-** اسلام نوم د کلمے ویلو دے.



حدیث کښے فرمائیلی دی :-

من قال لا اله الا الله دخل الجنة، چه چا لا اله الا الله او ویله نو دے به جنت ته داخلیږی نو بیا ممکنه په څه کار یا څه خبره یا ګنډے کافی کیدے شی.

مسلمانانو! لږ هوښیار او خبردار شئ. دا دے غلط مکر او فریب حاصل دا دے چه صرف په ژبه باندے لا اله الا الله ویلو سره ګویا د الله خوښے جوړیږی د یو سړی خوښے که چرے د ده نه متحمل او کړی په خپلو باندے او دخی هر څه او کړی خو د خوښے وائی نه ے نه او ځی د ده شان که چا کلمه لا اله الا الله اووے نو بیا چه ے څه خوښه وی کوی دے که خدائے پاک ته دروغژن وائی. یا پیغمبر ته قسم قسم کنځل کوی. نو کولے شی. د ده اسلام نه بدلیږی. د دے مکر جواب خو یو په دے آیت کریمه کښے ذکر شوے دے الٓمٓ ۝ اَحَسِبَ النَّاسُ آیا خلق په دے ګمان کښے دی چه صرف د اسلام په دعوی به خلاص شی او څه امتحان به پرے نه راځی. اسلام که چرے صرف د کلمے ویلو نوم دی نو هغه خو شته، نو بیا د خلقو دا ګمان ولے غلط دی چه قرآن مجید د هغے رد کوی. د غه د ګنګه؟

## ستاسو رب عزّ وجل فرمائی

قَالَتِ الْأَعْرَابُ آمَنَّا ۖ قُل لَّمْ تُؤْمِنُوا وَلَٰكِن قُولُوا أَسْلَمْنَا وَلَمَّا يَدْخُلِ الْإِيمَانُ فِي قُلُوبِكُمْ ۖ

(سورة الحجرات ع ۲ پ ۲۶)

دا بانډچیان وائی چه مونږه ایمان راوړے دے ورته اووایه چه تاسو ایمان نه دے راوړے بلکه داسے وائی چه مونږه د اسلام تابع یو او نه دے داخل شوے ایمان زړونو ستاسو کښے۔

او بیا فرمائی:-

إِذَا جَاءَكَ الْمُنَافِقُونَ قَالُوا نَشْهَدُ إِنَّكَ لَرَسُولُ اللَّهِ ۗ وَاللَّهُ يَعْلَمُ إِنَّكَ لَرَسُولُهُ وَاللَّهُ يَشْهَدُ إِنَّ الْمُنَافِقِينَ لَكَاذِبُونَ ۝

(سورة المنافقون ع ۱ پ ۲۸)

کله چه منافقان ستا دربار ته حاضرشی نو وائی: چه مونږه ګواهی بیانوو چه د خدائے رسول ئے او الله ښه عالم دے چه ته د خدائے رسول ئے او الله ګواهی کوی چه دا منافقان په خپله دعویٰ کښے دروغژن دی۔



اوګورئ چه اوږدے اوږدے کلمے وائی په ځنګ ځنګ تاکیدونو باندے محکم خبرے په قسم قسم قسمونو باندے مؤید خبرے هیڅ کله د اسلام مناسب او نه ګرزیدے۔ او الله تعالیٰ دوی باندے د دروغژنو او د کذاب ګواهی ورکړه نو د من قال لا اله الا الله دخل الجنة دا مطلب جوړول صراحتهً قرآن عظیم رد کول دی۔ صرف دومره ده چه څوک کلمه وائی خپل ځانته مسلمان وائی، مونږ هغه ته مسلمان وایو ترڅو پورے چه د ده د خولے نه داسے یوه خبره یا څه حرکت نه وی څرګند شوے چه د اسلام نه مخالف وی او چه کله داسے حرکت صادرشی چه د اسلام سره منافی وی نو کلمه ویل بیا هیڅ کله کار نه ورکوی۔

## ستاسو خدائے پاک فرمائی:-

يَحْلِفُونَ بِاللَّهِ مَا قَالُوا وَلَقَدْ قَالُوا كَلِمَةَ الْكُفْرِ وَكَفَرُوا بَعْدَ إِسْلَامِهِمْ ۔ ط

(سورة التوبة ع ۱۶ پ ۱۰)

دوی په خدائے قسم خوری چه دوی د پیغمبر په شان کښے څه ګستاخی نه ده کړے او حال دا په تحقیق سره ویلے دے

دوی کلمه دَ کفر او کافران شوی دی پس دَ اسلام څخه نه ـ
ابن جریر او طبرانی او ابوالشیخ او ابن مردویه دَ حضرت
عبدالله بن عباس رضی الله تعالیٰ عنهٔ نه روایت کوی:
رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ یو ونې دَ لاندې
تشریف فرما وو، ارشاد ئې اوکړو چه عنقریب یو سړے
به راشی تاسو ته به دَ شیطان په سترګو ګوری که راغے
نو د دهٔ سره خبرې مه کوئ څهٔ وخت تیر نه وو چه یو شنو
سترګو والا سړے تیر شو. حضور صلی الله علیه وسلم
را اوغوښتو، او ورته فرمایئل ورته چه تهٔ او ستا ملګرے په
څهٔ خبره زما شان کښې ګستاخی کوی، هغه لاړو او خپل ملګری
ئې را اوغوښتل. ټول راغلل، قسمونه ئې اوخوړل، چه
مونږه ګستاخی نهٔ ده کړې او مونږه هیڅ د بے ادبی خبره دَ
حضور په شان کښې نه ده ویلې. په دے باندے الله تعالیٰ
آیت نازل کړو چه دوی په خدائے قسمونه خوری چه ګستاخی
مونږه نهٔ ده کړې، او بے شکه ضرور دوی د کفر کلمه ویلے
ده او ستا په شان کښے ئې دَ ګستاخئ او بے ادبی خبرے
کړی دی. او دَ اسلام دَ راوړو نه پس کافر شوی دی او ګوره
الله تعالیٰ ګواهی ورکوی چه د نبی علیه الصلوٰة والسلام په شان
کښے بے ادبی کول د کفر کلمه ده او بے ادبی او ګستاخئ لفظ



ویو لئے اګرکه د لاکه مسلمانئ دعوئ کوی په کرو وړو نو څله
کلمه اووائی خو کافر دے او بیا فرمائی :ـ
وَلَئِنْ سَأَلْتَهُمْ لَيَقُولُنَّ إِنَّمَا كُنَّا نَخُوضُ وَ
نَلْعَبُ ط قُلْ أَبِاللّٰهِ وَآيَاتِهِ وَرَسُولِهِ كُنْتُمْ
تَسْتَهْزِئُونَ ه لَا تَعْتَذِرُوا قَدْ كَفَرْتُمْ بَعْدَ
إِيمَانِكُمْ ط (سورة التوبه ع ۱۳ پ ۱۰)
اے خوږه حبیبه ! که تهٔ دَ دوئ نه تپوس اوکړے
نو دوئ به ضرور اووائی چه مونږه هسے خندا او لوبے کولے،
تهٔ اووایه ! آیا تاسو الله او د دهٔ رسول او د دهٔ ـ
ایا تو نو پورے توقے کوئ، بهانے مهٔ کوئ تاسو کافر شوی
یئ ایمان نه پس، ابن ابی شیبه او ابن جریر او ابن المنذر
او ابن حاتم او ابوالشیخ امام مجاهد شاګرد خاص دَ
سیدنا عبد الله بن عباس رضی الله تعالیٰ عنهم نه روایت
فرمائی، انه قال فی قوله تعالیٰ ه لَئِنْ سَأَلْتَهُمْ لَيَقُولُنَّ
إِنَّمَا كُنَّا نَخُوضُ وَنَلْعَبُ ه
قال رجل من المنافقین یحدثنا محمد ان ناقة
فلان بوادی کذا و ما یدریه بالغیب ه
یعنے د یو سړی اوښه ورکه شوله دَ هغې کتل پکار
وو. رسول الله صلی الله علیه وسلم او فرمایئل چه دغه

اوبنه فلانی ځنګل فلانی ځائے کښے ده په دے خبره یو منافق اووے چه محمد (صلی الله علیه وسلم) مونږ ته بنائی چه اوبنه فلانی ځائے کښے ده، محمد (صلی الله علیه وسلم) په غیبو څه پوهیږی، په دے خبره الله تعالٰی دا آیتِ کریمه نازل کړه چه آیاتا سو الله او رسول پورے ټوقے کوئ بهانے مه جوړوئ، تاسو مسلمانان وئ دے لفظ په وئیلو سره کافر شوئ (اوګورئ تفسیر امام ابن جریر مطبع مصر جلد ۱۰ صفحه ۱۰۵ وتفسیر درمنثور امام جلال الدین سیوطی جلد ۳ صفحه ۲۵۴ -

مسلمانانو! د محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم په شان کښے دومره ګستاخی کولو باندے چه دے په غیبو څه پوهیږی، کلمه وئیل ئے پکار نه شول او الله تعالٰی صفا او فرمائیل چه بهانے مه جوړوئ تاسو د اسلام نه پس کافر شوی یئ. د لته کښے دے هغه خلق عبرت واخلی چه د حضور صلی الله علیه وسلم د علم غیب نه بمطلقاً منکر دی: اوګورئ دا قول د منافق دے او د دے خبرے وئیونکی ته الله تعالٰی اووے چه ته خدائے او رسول پورے ټوقے او مسخرے کوے او صفا صفا ئے ورته کافر، مرتد او فرمائیل. او وئے به دا سے نه



وی، حالانکه د نبوت شان دا دے چه د غیبو خبرے به پیا نوی او معلومے به دی ورته، لکه څنګه چه امام حجة الاسلام محمد غزالی او امام احمد قسطلانی او مولانا علی قاری او علامه محمد زرقانی وغیره اکابرینو علماوو تصریح کړے ده چه د هغے تفصیل رسائل علم غیب کښے په ښه طریقه او په اعلٰے بیان سره ذکر شوے دے، بیا د هغه خلقو د شرمندګئ او د کمال ګمراهئ په څه وائے چه د غیبو یوه خبره د خدائے پاک بندو ل خپل پیغمبر ته او ده ته معلومیدل محال او نا ممکن ګڼړی. د ده په نزد باندے د الله تعالٰی نه هر څه غائب دی. او د الله تعالٰی دومره قدرت نشته چه چا له علم غیب ورکړی الله تعالٰی دے مونږ له د شیطان د دهوکو نه پناه راکړی آمین.

دا منو چه د الله د بندو لو نه بغیر یو ذره غیب منل بل چا له کفر دے. او د الله تعالٰی په ټولو علمونو باندے احاطه کول هم باطل دی[2] او د اکثرو علماوو اختلاف دے لیکن

---

[1] د دے نوے شاخسانے په رد کښے د الله تعالٰی په فضل څلور رسالے دی.

(۱) راحت جوانح الغیب (۲) الجلاء الکامل (۳) ابراز المجنون (۴) میل الصداة

دے نه څکښے هم ترجمے سره شائع شوی دی او باقی دے هم د الله په فضل ورسته پس شائع شول (دا د اعلیحضرت تصانیف دی). ۱۲ منه

[2] اکثر لفظ د قید لګولو فائده رسالة الفیوض المکیه محب لدولة المکیه کښے مطالعه کړی انشاء الله ۱۲۰

روځ اول نه د روځ آخره پورې ما کان وما یکون ټول علم د الله
د علم سره هغه نسبت نه لري څومره چه د یو ذرې د لاکهې
اوه کروړمې حصې د لوندوالی د کروړ په کروړ سمندرونو د اوبو
سره وي بلکه دا په خپله د علوم محمدیه صلی الله علیه وسلم نه یوه
ذره کې شان نکره ده د دې ټولو امورو تفصیل په الدولة المکیة
کښې اوګورئ، دا سې نورو کتابونو کښې، خیر دا خو یو جمله
معترضه (زیاتي خبره په مینځ کښې) وه او انشاء الله بیا
فائده مند خبره وه اوس مخکښې بحث له واپس راځو د دې
باطلې فرقې **دویم مکر** دا دې چه د سیدنا امام
اعظم رضی الله تعالیٰ عنهٗ مذهب دې چه لا نکفر احد
من اهل القبلة. مونږه اهل قبله کښې هیڅ یو ته کافر
نه وایو. او حدیث کښې دي چه څوک زمونږه مونځونه
کوي. زمونږه قربانی خوري او زمونږه قبلې ته مخ کوي هغه
مسلمان دې.

مسلمانانو! دې خبیث مکر کښې هم دې خلقو ډېر
پوهیلو نه خبره واړوله او صرف قبلې طرفته مخ کولو لوم
ته اسلام کینبودلو. یعنې چه څوک قبلې ته مخ کړي، مونځ
اوکړي نو مسلمان دې اګر که الله پاک ته دروغژن وائي.
محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم ته کنځل کوي. بیا



هیڅ صورت په هیڅ طریقه سره ایمان نه ځي. ع
چون وضو ئے محکم بی بی تمیز

اولاد دې مکر جواب -

## ستا سو ذو الجلال فرمائي

لَيْسَ الْبِرَّ اَنْ تُوَلُّوْا وُجُوْهَكُمْ قِبَلَ الْمَشْرِقِ وَ
الْمَغْرِبِ وَلٰكِنَّ الْبِرَّ مَنْ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ
الْاٰخِرِ وَالْمَلٰٓئِكَةِ وَالْكِتٰبِ وَالنَّبِيّٖنَ ۚ
(سورة البقره ع ۶ پ ۲)

اصل نیکي دا نه ده چه تاسو واړوئ خپل مخونه مشرق
او مغرب طرفته بلکه اصل نیکي دا ده چه ایمان په الله او په
ورځ د آخرت. او په ملائکو او په قرآن او په ټولو پیغمبرانو
باندې راوړې.

اوګوره صفا ئې اوفرمايل چه اصل په ضروریات دین
باندې ایمان راوړل پکار دي. بغیر د دې نه قبلې ته مخ کول
او مونځ کول هیڅ څیز نه دې او فرمائي.

وَمَا مَنَعَهُمْ اَنْ تُقْبَلَ نَفَقٰتُهُمْ اِلَّآ اَنَّهُمْ كَفَرُوْا
بِاللّٰهِ وَبِرَسُوْلِهٖ وَلَا يَاْتُوْنَ الصَّلٰوةَ اِلَّا وَهُمْ كُسَالٰى
وَلَا يُنْفِقُوْنَ اِلَّا وَهُمْ كٰرِهُوْنَ ۝ (سورة التوبه ع ۷ پ ۱۰)

دوئ چه څه خروج کوی د هغې قبلې (نه) نه دی بند شوی مګر
دوی وجهې نه چه دوئ په الله او په رسول کافر دی، او
مانځه له نه راځی، ملا ستی سره او نه خروج کوی مګر په بد
زړهٔ سره او ګوره د دوئ د مونځونو بیان یې اوکړو او بیا یې
ورته کافر هم او وې، ولې دوئ قبلې ته مونځ نه کوو. یواځې قبله
څهٔ ده، قبله دل و جان، کعبهٔ دین و ایمان سرور دو عالم صلی
الله علیه وسلم نه دروستو قبلې طرفته مونځ کوی.

اوبیا فرمائی :-

فَاِنْ تَابُوْا وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتَوُا الزَّكٰوةَ فَاِخْوَانُكُمْ
فِى الدِّيْنِ وَنُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّعْلَمُوْنَ ۝ وَاِنْ
نَّكَثُوْا اَيْمَانَهُمْ مِّنْۢ بَعْدِ عَهْدِهِمْ وَطَعَنُوْا فِىْ
دِيْنِكُمْ فَقَاتِلُوْا اَئِمَّةَ الْكُفْرِ اِنَّهُمْ لَاۤ اَيْمَانَ لَهُمْ
لَعَلَّهُمْ يَنْتَهُوْنَ ۝ (سورة التوبه ع ۸ پ)

پس که چرې دوئ توبه اوباسی او مونځ شروع
کړی او زکوٰة ورکړی نو بیا ستاسو دینی رورونه دی، او
بیانوو مونږه آیاتونه هغه قوم ته چه پوهیږی او که
دوئ خپلې وعدې ماتې کړې، په دین کښې یې بدګوئی شروع
کړه نو د کفر د مشرانو سره او جنګیږئ (قتل یې کړئ).
ځکه چه د دوئ ایمان نشته، بنائیګی چه دوئ منع شی ـــ



اوګوری: که چرې مونځ او زکوٰة والا په دین کښې طعن
اوکړی نو دوئ ته یې د کفر پیشوا د کافرانو مشران اوبلے
آیا د خدائ او رسول په حق کښې ګستاخی کول په دین کښې
طعن کول نه دی. د دې بیان هم واورئ.

## ستاسو رب جل جلاله فرمائی:

مِنَ الَّذِيْنَ هَادُوْا يُحَرِّفُوْنَ الْكَلِمَ عَنْ مَّوَاضِعِهٖ
وَيَقُوْلُوْنَ سَمِعْنَا وَعَصَيْنَا وَاسْمَعْ غَيْرَ مُسْمَعٍ وَّرَاعِنَا
لَيًّا بِاَلْسِنَتِهِمْ وَطَعْنًا فِى الدِّيْنِ ۚ وَلَوْ اَنَّهُمْ
قَالُوْا سَمِعْنَا وَاَطَعْنَا وَاسْمَعْ وَانْظُرْنَا لَكَانَ خَيْرًا
لَّهُمْ وَاَقْوَمَ وَلٰكِنْ لَّعَنَهُمُ اللّٰهُ بِكُفْرِهِمْ فَلَا
يُؤْمِنُوْنَ اِلَّا قَلِيْلًا ۝

(سورة النساء ع پ ۵)

بعضې د یهودیانو هغه دی چه بدلوی کلمې د خپلو ځایونو
نه، او وائی چه مونږه واوریده او نه یې منو او واوره ته
نه یې اوریدونکې. او راعنا وائی خپلې ژبې اړوی، او دین
کښې طعن کوی او که چرې دوئ ویلې وې چه مونږه
واوریدل، او مونږه او منل او واورئ او او ګوری مونږ

ته نو بنهٔ به وی، دوئ د پاره او بنه صحیح بهٔ وُو. لیکن
لعنت کړے دے الله په دوئ باندے په سبب دَ کفرِ دَ دوئ
سره، پس ایمان نه راوړی مګر لږ،

که چرے یو یهودی دربار نبوت ته حاضر شی، او
حضور اقدس صلی الله علیه وسلم ته ئې عرض کول غواړی
نو داسے وائی چه واوره ته نه اورے دے ئې ظاهری دعا
معلومیږی. یعنے حضور صلی الله علیه وسلم دے ئې غلط
خبره چا نه وا نه وری او په زړهٔ کښے به ئې بد دعا (خیرے)
مطلب ولو. چه دے دے وانه وری او چه کله به حضور
اقدس صلی الله علیه وسلم ځنې ارشاد کول غوښتل او ځنې
مهلت به ئې غوښتے او کړو. نو دوئ به راعنا دے چه د دے یو
مطلب دا دے چه زمونږ رعیت او کړه او خپل پټ مطلب
به ئې زړهٔ کښے ساتلو چه غلط معنے به ئې مراد وه چه هغه
(رعونت والا) معنی ده، بعضو به ژبے له په خکته زور
ورکړو او راعینا به ئې ترے جوړ کړو. یعنے زمونږ شپونکے
کله چه دا لفظ په یو طرف باندے طعن شو په دین
کښے. نو بیا هغه خبره ولے طعن او بدګوئی نهٔ وی،
چه صاف صاف وی او په هر طرف باندے غلطه وی بلکه
دا یه سخته طعنه وی. بلکه چه انصاف اوشی نو دَ دے



خبرو ظاهری بدی او غلطی وے حد ته رسی چه دوئ به
بد دعا (خیرے) کوے د کونړوالی یا شپونکی وغیره.
غلط کلمات ئې استعمالول، هغه حد ته چه کوم دِ ن زمانے
علماء دَ حضور علیه السلام په شان کښے کړی دی. دوئ پیغمبر
ته نسبت کوی چه شیطان نه په علم کښے کم ګڼړی یا دَ پاګلانو
او چاریانو سره ئې علم کښے برابروی او خدائے پاک
ته نسبت کوی چه (معاذ الله) دروغژن دے. دروغ وائی
کوم سړے چه ورته دروغژن او وائی هغه سنی صالح دے
والعیاذ بالله رب العالمین ؕ

دوئم[۲] جواب دا دے چه دا غلط وهم دستا امام اعظم
رحمة الله تعالیٰ علیه مذهب ګڼړل په امام اعظم صاحب
باندے سخته افترا ده او تهمت او بهتان دے پورے امام
رضی الله تعالیٰ عنه خپلو پاکو عقیدو په کتاب مظهره فقه
اکبر کښے فرمائیلی دی:

صفاته تعالیٰ فی الازل غیر محدثة ولا مخلوقة
فمن قال انها مخلوقة او محدثة او وقف فیها او شک
فیها فهو کافر بالله تعالیٰ.

دَ الله تعالیٰ صفتونه ټول قدیم دی نه پیدا دی او

نه لوی جوړ شوی دی پس هغه څوک چه ورته د مخلوق
د محدث نسبت کوی هغه په الله تعالیٰ باندے کافر دے
پابه دے باب کښے توقف کوی یا پکښے شک کوی هغه
هم کافر دے۔ او د خدائے نه هم منکر دے۔ همدارنګه امام اعظم
رضی الله تعالیٰ عنهٗ کتاب الوصیه کښے فرمائی :-

من قال بان کلام الله تعالیٰ مخلوق فهو کافر
بالله العظیم ۔

څوک چه او وائی چه د الله تعالیٰ کلام مخلوق دے، نو
دے کافر شو په لوئے الله تعالیٰ باندے۔ شرح فقه اکبر
کښے دی۔

قال فخر الاسلام قد صح عن ابی یوسف انه
قال ناظرت ابا حنیفة فی مسئلة خلق القرآن
فاتفق رأیی ورأیه علی ان من قال بخلق القرآن
فهو کافر و صح هذا القول ایضاً عن محمد رحمهٗ
الله تعالیٰ ۔

امام فخر الاسلام رحمة الله تعالیٰ فرمائی : چه امام ابو یوسف
رحمة الله تعالیٰ علیه نه په صحیح روایت سره ثابته شوے
ده چه دوئی فرمائیلی دی چه د ابو حنیفه رحمة الله تعالیٰ
علیه سره د خلق قرآن مسئله کښے ما مناظره او کړه نو زمونږ



دواړو هغه رائے متفق شوے په دے خبره چه څوک قرآن
ته د مخلوق نسبت او کړی نو هغه کافر دے او دا روایت
امام محمد رحمة الله علیه نه هم صحیح ثابت دے، یعنے زمونږ
د دروے واړو امامانو په دے خبره اتفاق او اجماع ده چه
قرآن پاک ته مخلوق ویونکے کافر دے، آیا معتزله، او
کرامیه او روافض (شیعه ګان) قرآن پاک ته مخلوق وائی۔
دے قبلے طرفته مونږ نه کوی۔ د نفس مسئلے جزئیه داخل امام
مذهب حنفی سیدنا امام ابو یوسف رحمة الله تعالیٰ علیه
په کتاب الخراج کښے فرمائیلی دی :-

ایما رجل مسلم سب رسول الله صلی الله تعالیٰ علیه
وسلم او کذبه او عابه او تنقصه فقد کفر بالله تعالیٰ
و بانت منه امرأته

چه کوم یو مسلمان حضور صلی الله علیه وسلم ته کنځل او کړی
یا ورته د دروغو نسبت او کړی، یا پکښے عیب بیان کړی یا
پکښے نقصان بیان کړی یعنے عیب یا نقصان پرے او لګوی،
دے یقیناً کافر شو په الله تعالیٰ باندے او ښځه ترے
جدا شوه۔

او ګورئی، څومره صفا فیصله ئے او کړه چه د حضور صلی
الله علیه وسلم په شان کښے ګستاخی کونکے که مسلمان وی

نو کافر کیږي پرے او د ده نکاح هم ماتیږي و لے دا مسلمان
اهل قبله نه دو یا اهل کلمه نه دو هو ځکه دومګره محمد رسول
الله صلی الله علیه وسلم په شان کښے ګستاخي کولو سره نه کلمه
قبلیږي ، نه قبله قبوله ده ، والعیاذ بالله

دریم جواب دا دے ، ددین داماما نو په اصطلاح
کښے اهل قبله هغه دي چه په ټولو ضروریات دین باندے ایمان
لري. په دے کښے د یوے خبرے نه هم منکر نه وي او که د
یوے نه پکښے هم منکر وي نو هغه قطعاً کافر او مرتد شو
داسے چه کي څوک د ده په کافر نه وائي هغه هم کافر دے. شفا شریف
او بزازیه ، او درر او غرر ، فتاوی خیریه وغیره کښے دي:

اجمع المسلمون ان شاتمه صلی الله تعالی علیه وسلم
ومن شک فی عذابه وکفره کفر

د ټولو مسلمانانو اجماع ده چه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته کنځل
کوونکے ، او څوک چه د ده په عذاب او کفر کښے شک کوي ، کافر دے
مجمع الانهر او درمختار کښے دي :

واللفظ له الکافر بسب نبی من الانبیاء لا تقبل
توبة مطلقاً ومن شک فی عذابه وکفره کفر ه

چه پیغمبرانو کښے یو پیغمبر ته کنځل اوکړي یا د کنځل کوونکي
په عذاب او کفر کښے شک اوکړي ، کافر دے ، او هیڅ توبه



د ده نه قبلیږي ۔

الحمد لله دا نفس مسئله داسے بیش قیمة جزئیه ده چه
په دے کښے د بدګویو په کفر باندے د تمام امت اتفاق
او اجماع ده او دا هم چه څوک ئے کافر نه ګڼړي هغه هم
کافر دے ۔

شرح فقه اکبر کښے دي :

فی المواقف لا یکفر اهل القبلة الا فیما فیه انکار
ما علم مجیئه بالضرورة او المجمع علیه کاستحلال
المحرمات ه ولا یخفی ان المراد بقول علمائنا لا یجوز
تکفیر اهل القبلة بذنب لیس مجرد التوجه
الی القبلة فان الغلاة من الروافض الذین یدعون
ان جبرائیل علیه الصلوة والسلام غلط فی الوحی
فان الله تعالی ارسله الی علی رضی الله تعالی عنه
وبعضهم قالوا انه اله وان صلوا الی القبلة
لیسوا بمؤمنین وهذا هو المراد بقوله صلی الله
تعالی علیه وسلم من صلی صلوتنا واستقبل
قبلتنا واکل ذبیحتنا فذلک مسلم اه مختصراً

یعني مواقف کښے دي چه اهل قبله نه به کافرونه وایي
مګر که د هغه کار نه انکار کوي چه هغه ضروري دي یا پوهے

اجماع دی. لکه حلال گڼل د حرامو ه او پټول د نه دی دا خبره چه مراد د دے قول د علماؤ زمونږ ه نه چه د اهل قبله تکفیر جائز نه دے. په څه گناه سره او صرف مخ کول قبلے ته مراد نه دی ځکه چه غالی شیعه گان چه دا دعوے لری چه حضرت جبرائیل علیه الصلوٰة والسلام خطا شوے دے ځکه چه الله پاک دے حضرت علی رضی الله تعالیٰ عنهٔ ته رالیږلے وو او بعض شیعه وائی چه دے خدائے دے اگرکه دوئ مونځونه کوی. او قبلے طرفته مخ کوی. خو مومنان نهٔ دی او هم دا مراد دے د قول د نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه چه چا زمونږ ه مونځ اوکړو او زمونږه قبلے ته ئے مخ کړو او زمونږه قربانی ئے اوخوړله نو دے مسلمان دے.

یعنے چه کله د دین په تمامو ضروریاتو باندے ئے ایمان وی دیوے خبرے نه منکر نه وی نو هغه مسلمان دے

اعلم ان المراد باهل القبلة الذین اتفقوا علٰی ماهو من ضروریات الدین کحدوث العالم وحشر الاجساد وعلم الله تعالٰی بالکلیات والجزئیات وما اشبه ذلک من المسائل المهمات فمن واظب طول عمره علی الطاعات والعبادات مع اعتقاد قدم العالم او نفی الحشر او نفی علمه سبحانه بالجزئیات



لا یکون من اهل القبلة وان المراد بعدم تکفیر احد من اهل القبلة عند اهل السنة انه لا یکفر مالم یوجد شیئ من امارات الکفر و علاماته ولم یصدر عنه شیئ من موجباته

یعنے پوهه شه چه مراد په اهل قبله سره هغه خلق دے چه دوئ متفق دی په هغه کارونو چه د دین ضروری خبرے دی لکه حدوث د عالم او پورته کیدل د جسو او علم د الله تعالیٰ په کلیاتو او جزئیاتو باندے محیط مثل او دا سے نورے مقصدی مسئلے شوے. پس هغه چا چه همیشه اوکړی په خپل اوږد عمر کښے په عبادتونو، طاعتونو باندے سره د دے عقیدے نه چه عالم قدیم دے یا نفی د حشر کوی یا د الله تعالیٰ علم په جزئیاتو سره نه منی نو دے اهل قبله نه دے او مراد په عدم تکفیر د اهل قبله د اهل سنت په نزد باندے دا دے چه هغه کافر به نهٔ وائی هغه چا ته چه مسلمان وی او د ده نه د کفر څه نخښه صادر شوی نه وی او نهٔ د ده نه دا سے یوه خبره صادره شی چه د کفر د پاره یوه ذریعه گرځی.

امام اجل سیدی عبد العزیز بن محمد بخاری حنفی رحمة الله تحقیق شرح اصول حسامی کښے لیکی ا.

ان غلا فیها (اے فی ہواہ) حتی وجب اکفارہ بہ
لا تعتبر وفاقہ ایضاً لعدم دخولہ فی مسمی الامۃ المشہود
لہا بالعصمۃ وان صلی الی القبلۃ واعتقد نفسہ
مسلماً لان الامۃ لیست عبارۃ عن المصلین الی
القبلۃ بل عن المؤمنین وہو کافر وان کان
لا یدری انہ کافر۔

یعنې بد مذهبه سړے که چرے خپل خواهش کښے زیاتے
کوی او دومره زیات اوشی چه د هغے په سبب سړه کافر کیږی
نو اجماع کښے د ده مخالفت یا موافقت معتبر نهٔ دے ځکه
چه د خطا نه بچ کیدل د امت د پاره راغلی دی او دے په
امت کښے نهٔ دے حساب اګر که قبلے طرفته مونځ کوی، او
خپل ځان ته مسلمان وائی۔ له دے وجے نه چه امت د
دے نه عبارت نهٔ دے چه څوک قبلے ته مونځ کوی بلکه امت
مؤمنانو ته وائی او دغه سړے کافر دے اګر که دے پخپل کفر
باندے عالم نهٔ وی، په خپل کفر نهٔ پوهیږی۔

رد المحتار کښے دی:۔

لا خلاف فی کفر المخالف فی ضروریات الاسلام
وان کان من اهل القبلۃ المواظب طول عمره
علی الطاعات کما فی شرح التحریر ه



یعنې چه څوک د اسلام د ضروریاتو نه مخالف وی د
هغه په کفر کښے هیڅ خلاف نشته اګر که دے اهل قبله وی۔
او خپل ټول عمر د الله په عبادت کښے تیر کړی لکه شرح
تحریر کښې وی۔ د عقائدو کتابونه او د فقه او اصولو کتابونه د
دے نه مالامال دی۔

څلورم جواب:۔ په خپله مسئله بنهٔ ښکاره ده۔ آیا څوک
پنځه وخته مونځ، قبلے طرفته کوی او بیا یو وخت کښے بت ته
سجده کوی نو دے چرته د یو عقل مند په نزد مسلمانیدے
شی حالانکه الله تعالی ته دروغژن وئیل یا د محمد رسول الله
صلی الله علیه وسلم په شان کښے ګستاخی کول د بت سجدے
نه زیات بدتر ده اګر که په کفر کښے یو شان دی وذلک ان
الکفر بعضه اخبث من بعض وجه دا ده چه بت ته سجده
کول د الله تعالی د تکذیب علامه ده او کوم شے چه
علامه د تکذیب وی نو هغه د عین تکذیب نه زیات
وی او د هغے برابر نهٔ وی او په سجده کښے دا یو عقلی احتمال
کیدے شی چه صرف تحیۃ او تعظیم مقصود وی نه عبادت [1]
او محض

---

[1] شرح مواقف کښے دی "سجوده لها یدل بظاهره انه لیس
بمصدق ونحن نحکم بالظاهر فلذا حکمنا بعدم ایمانه لا لان ←

او محض تحیة کفر نه دے، له دے وجه نه که چرے یو عالم،
فاضل یا عارف ته د تعظیم سجده اوشی نو گنهگار دے
لیکن کافر نه دے د بت په عبادت باندے شریعت د کفر
فتویٰ حکم لگولے دے چه دا د کافرانو یو خاص نخښه ده
په خلاف د بدگوئی نه او د گستاخئ نه۔ چه د حضور اقدس
صلی الله علیه وسلم په شان کښے ئے اوکړی۔ حکم چه دا فی
نفسه کفر دے، د دے کښے بله څه وجه نشته نه بکښے د تاویلاتو
احتمال راځی۔ په دے کښے د اسلام هیڅ احتمال نشته او زهٔ دلته
په دے فرق باندے بناء نه جوړوم[2] چه بت ته سجده کوونکی توبه
په اجماع د امت باندے قبوله ده، مګر د سید عالم صلی الله
علیه وسلم په شان کښے د گستاخئ کوونکی توبه په زرګونو توبے
د ائمه دین په نزد بالکل نهٔ دی قبول۔ او هم دا مذهب
زمونږه د مذهب حنفی علماؤ لکه امام بزازی او امام محقق
علی الاطلاق ابن الهمام او علامه مولیٰ خسرو صاحب درر وغرر
او علامه زین بن نجیم صاحب بحرالرائق او اشباه والنظائر

---

[2] عدم السجود لغیر الله دخل فی حقیقة الایمان حتی لو علم انه لم یسجد لها
علی سبیل التعظیم واعتقاد الالهیة بل سجد لها وقلبه مطمئن بالتصدیق لم یحکم
بکفره فیما بینه وبین الله تعالیٰ وان اجری علیه حکم الکفر فی الظاهر اهـ ۱۲ منه



او علامه عمر بن نجیم صاحب نهرالفائق او علامه ابو عبدالله
محمد بن عبد الله غزی صاحب تنویرالابصار او علامه
خیرالدین رملی صاحب فتاوی خیریه او علامه شیخی زاده
صاحب مجمع الانهر او علامه مدقق محمد بن علی حصکفی صاحب
درمختار وغیره د دین علماء رحمة الله علیهم اختیار کړیدے۔
بیدان تحقیق المسئلة فی الفتاوی الرضویه له دے وجے
نه چه د توبے قبلیدل صرف د حاکم اسلام کار دے۔
چه دے خلقو ته د توبے نه بعد هم د موت سزا ورکوی
او کنه که توبه صدق دل نه وی نو د الله په نزد باندے
قبوله ده۔ آخر بدګویه خپل ځان د یارهٔ دا دستاویز جوړه
نکړی چه زما توبه نه قبلیږی، نو ولے توبه او باسم، نه نه د
توبے په وجه کفر ختمیږی، مسلمان به شی، او د همیشه دوزخ
نه به خلاصے بیا مومی پس په دے قدر باندے اجماع ده۔
کما فی رد المحتار وغیره والله تعالیٰ عنه دوهمے دینه فرقیے
دریم مکر دا دے چه فقه کښے وی چه یو تن کښے یو کم سل
نخښے د کفر وی او یوه خبره پکښے د اسلام وی نو هغه ته
کافر ویل پکار نهٔ دی۔
اولاً :۔ دا خبیث مکر د قولو مکرونو نه ډیر بد تر او
ضعیف دے چه دے دا حاصل دا دے چه چا په ورځ کښے

یو ځل اذان اوړے یا دوه رکعته مونځ اوکړو او یو کم سل ځله بت ته سجده اوکړی. نو هغه مسلمان دے.

په ده کښې یو کم سل خبرے د کفر دی. نو یوه پکښې اسلام هم ده، دا کافی ده. حالانکه مومن خو مومن دے هیڅ یو عقلمند به ده ته مسلمان اونه وائی.

دوئیم:- دوے مکر دوجے نه

چه د سره د الله د وجود نه منکر دی. د تمامے دنیا کافران مشرکان، مجوسیان، هندوان، نصاری، یهود وغیره ټول کفار و ته مسلمان وئیل پکار دی، ددے خبرو نه که منکر دی نو د الله تعالیٰ د وجود خو قائل دی کنه. دا یوه خبره ټولو نه زیاته د اسلام خبره ده بلکه د ټولو اسلامی خبرو اصل دے. خصوصاً کفار د فلاسفه او آریه وغیره چه خپل ګمان کښې د توحید قائل دی، او یهود او نصاری خو به د اعلیٰ درجے مسلمانان شی ځکه چه د توحید سره د الله پاک نورے زرګونه خبرے او زرګونو پیغمبرانو باندے او قیامت حشر او حساب او ثواب او عذاب او جنت او دوزخ دا ټولے د نورو اسلامی خبرو قائل دی.

دریم:- ددے مکر په رد کښې د قرآن عظیم هغه آیاتونه چه مخکښې تیر شوے دی، کافی وافی دی چه هغے کښې



سره د وصف اسلامی کلمه وئیلو او مونځ کولو په یوه خبره باندے کافر کړی دی او د کفر حکم ئے پرے کړے دے یو ځائے کښې ارشاد دے:-

وَكَفَرُوا بَعْدَ إِسْلَامِهِمْ - دوئ اسلام نه پس کافر شوی دی. بل ځائے فرمائی:-

لَا تَعْتَذِرُوا قَدْ كَفَرْتُمْ بَعْدَ إِيمَانِكُمْ. بهانے مه کوئ تاسو کافر شوی یئ د ایمان نه بعد، حالانکه ددے مکر خبیث په بنا چه چا کره یو کم سل نه زیات د کفر خبرے جمع نشی نو صرف یوه خبره باندے د کفر حکم نه دے پکار کیدے نشی چه دوئ ددے دا جواب ورکړی چه دا د الله تعالیٰ غلطی یا جلد بازی ده چه هغه د اسلام دائره تنګه کړه او کلمه ګو خلقو ته اهل قبلو ته ئے دهوکے ورکړے صرف په یوه یوه خبره د اسلام نه اوباسل او بیا په زبردستی سره ورته وائی: چه لا تعتذروا بهانے مه جوړوئ بهانو ته ئے پرېښودل نه ځے د دوئ نه د عذر د اوریدو قصد اوکړو.

افسوس دے الله تعالیٰ په نیچر باندے نیچریا د دوئ د خیالاتو د خلقو د وسیع الاسلام ریفارمر سره مشوره نه ده کړے، الا لعنة الله على الظالمين ه

څلورم: د دے مکر جواب :-

## ستاسو رب تعالیٰ فرمائی :-

أَفَتُؤْمِنُونَ بِبَعْضِ الْكِتَابِ وَتَكْفُرُونَ بِبَعْضٍ ۚ فَمَا جَزَاءُ
مَنْ يَفْعَلُ ذَٰلِكَ مِنْكُمْ إِلَّا خِزْيٌ فِي الْحَيَوٰةِ الدُّنْيَا ۖ
وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ يُرَدُّونَ إِلَىٰ أَشَدِّ الْعَذَابِ ۗ وَمَا اللَّهُ
بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ ۝ أُولَٰئِكَ الَّذِينَ اشْتَرَوُا الْحَيَوٰةَ
الدُّنْيَا بِالْآخِرَةِ ۖ فَلَا يُخَفَّفُ عَنْهُمُ الْعَذَابُ وَلَا هُمْ
يُنْصَرُونَ ۝

آیا تاسو په بعض کتاب ایمان راوړئ او په بعض کافرېږئ
پس نه ده جزا د هغه چا چه دا کار کوي مګر رسوائي ده په ژوند
د دنیا کښې او د قیامت په ورځ به ورکړے شي سخت عذاب.
او نه دے الله تعالیٰ ناخبره، هغه عمل نه چه تاسو يې کوئ.
دا هغه خلق دي چه اخستے يې دے دا ژوند د دنیا په عوض
د آخرت سره، پس سپک به نشي له دوئ نه عذاب او نه به د دوئ سره
امداد اوشي.

د خدائے په قرآن کښې فرض کړې يو زر خبرے دي نو
هره يوه خبره ځنې منل يوه اسلامي عقیده ده او س که يو



بنیادم يو کم زر خبرے اومني او صرف يوه نه مني نو قرآن مجید
فرمائي چه دے په يو کم زر خبرو منلو باندے مسلمان نه دے
بلکه صرف د يوے خبرے نه منلو په وجه کافر دے. په دنیا کښې
به دے شرمیږي او آخرت کښې به همیشه عذاب د الله باندے
مبتلا وي. دا لا څه کوے چه په يو وخت کښې به پرے سپک
نشي نو بیا چه د يو کم سل خبرو نه انکار اوکړي او يوه پکښې
اومني نو دے ته مسلمان وئیل بیا څه معنیٰ لري. دا د مسلمانانو
عقیده نه ده بلکه د قرآن مجید په ګواهئ سره دا ده ښکاره
کفر دے.

پنځم د دے مکر جواب :- اصل خبره دا ده چه فقهاء کرامو
باندے د دوئ ډیره لویه افتراء پوره کړه د دوئ هیڅ يو ځائے
کښې هم داسې نه دي وئیلي بلکه دا دوئ په خپله يُحَرِّفُونَ الْكَلِمَ
عَنْ مَوَاضِعِهِ (دا يهوديان د خپل ځايونو نه آيا تونه بدلوي)
په خصلت سره تحریف او تبدیل اوکړي. او بعضے مسئلے د بعضو
نورو سره اوګډوي. فقهاء کرامو دا نه دي فرمائیلي چه يو سړي
کښې يو کم سل خبرے د کفر وي او يوه د اسلام وي نو دے
مسلمان دے. حاشا لله. بلکه د تمام اُمت اجماع ده چه يو کس
کښې يو کم زر خبرے د اسلام وي او يوه پکښې د کفر وي نو هغه يقيناً
کافر دے، په يو کم سل څاڅکو کښې د عرق ګلاب که يو څاڅکے د اره

بول پریوځی نو هغوی پلیت شی، متیازے ترے جوړے شی. مګر دا
جاهلان وائی چه که یو کم سل څاڅکو متیازو کښے که یو څاڅکے
ګلاب پریوتل نو بیا ټول خوشبو به ګلاب ترے جوړیږی حاشا
فقهاء خو فقهاء دی یو ادنٰے تمیز او عقل والا سړے به هم د دا سے
جهالت خبره او نه کړی. بلکه فقهاء کرامو دا فرمائیلی دی، د
یو مسلمان که دا سے یو لفظ د خولے نه او ځی چه د هغے سل
طرفونه دی په هغے کښے یو کم ۹۹ سل د کفر طرف ته دی او یو د اسلام
طرفته، نو څو پورے چه دا ثابته نه دی چه هغه خاص کوم
یو طرف مراد کړے دے نو مونږ هغهٔ ته کافر نشو ویلے ځکه
چه آخر یو طرف یکښے د اسلام هم شته، څه پته ده کیدے
شی چه دهٔ هم دا پهلو غوره کړی وی او د دے سره فرمائی چه
که چرے د دهٔ مراد پهلو د کفر وی نو که مونږ ورله د اسلام
تاویل اوکړو نو هم هغهٔ ته څهٔ فائده نهٔ ورکوی هغه د الله په
نزد کافر دے، د دے مثال دا سے دے چه یو زید اووائی، چه
عمرو ته علم قطعی یقینی په غیبو حاصل دے، نو د ده د خبرے
دومره طرفونه دی :-

(۱) عمرو په ذاتی طور سره په غیبو پوهیږی نو دا ښکاره
کفر او شرک دے. قُل لَّا يَعۡلَمُ مَن فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ
ٱلۡغَيۡبَ إِلَّا ٱللَّهُ ط



(۲) عمرو په خپله په غیبو نه پوهیږی مګر چه څومره علم غیب
لری د هغے د ښودلو په وجه ورته علم یقینی حاصلیږی دا هم
کفر دے، تَبَيَّنَتِ ٱلۡجِنُّ أَن لَّوۡ كَانُواْ يَعۡلَمُونَ ٱلۡغَيۡبَ مَا لَبِثُواْ
فِي ٱلۡعَذَابِ ٱلۡمُهِينِ ط

(۳) عمرو نجومی دے.

(۴) د رمل علم خاوند دے.

(۵) لاس ګوری. پرسامندرک علم دے.

(۶) د کارغهٔ وغیره آواز

(۷) د موږکے د ختراتو په بدن غورزیدل.

(۸) د څهٔ پرنده یا وحشی ځاروی د ښی یا ګس طرف ته او باسیل
او تلل.

(۹) د سترګو یا د نورو اندامونو په حرکت او کرښو کښلو باندے بد فالی
نیسی. (۱۰) غښے غوروی. (۱۱) فال ګوری.

(۱۲) په حاضرو ځیزونو کښے څهٔ ځیز معمول جوړ کړی بیا ترے
تپوسونه د احوالو کوی.

(۱۳) په مسمریزم پوهیږی.

(۱۴) د جادو عملیات کوی.

(۱۵) د روحونو د تختی نه د حال تپوس کوی.

(۱۶) په علم قیافه پوهیږی.

(۱۷) د علم زایرچه نه واقف دے
په کښے ذریعو باندے دهٔ ته علم یقینی حاصلیږی[۱] دا قول کفر
دے. رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائی:-

من اتی عرافا او کاهنا فصدقه بما یقول
فقد کفر بما انزل علی محمد صلی الله علیه وسلم رواه
احمد والحاکم بسند صحیح عن ابی هریرة رضی الله
تعالی عنه ولاحمد وابی داؤد عنه رضی الله عنه فقد
بری مما انزل علی محمد صلی الله علیه وسلم -

(۱۸) په عمرو باندے وحی رسالت راځی دے په سبب په علم یقینی
پوهیږی لکه څنګه چه رسولان علیهم السلام ته حاصلیږی
او دا سخت کفر دے وَلٰكِن رَّسُولَ اللّٰهِ وَخَاتَمَ النَّبِيِّينَ ۵
وَكَانَ اللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمًا ۵

(۱۹) وحی خو نه راځی مګر د الهام په ذریعه قول غیوب په ده
منکشف کیږی، د ده علم ټولو معلوماتو د الله نه محیط دے.
دا هم کفر دے چه دے کښے زید عمرو ته د حضور پُرنور صلی
الله علیه وسلم په علم غیب باندے ترجیح ورکړه ځکه چه د حضور

---

۱؎ یعنے کله چه دے په وجه د غیبو په علم قطعی یقینی دعوی اوکړی
لکه نفس خبر کښے ذکر دے - ۱۲



صلی الله علیه وسلم علم هم د الله ټولو معلوماتو لره محیط نه دے-
قُلْ هَلْ يَسْتَوِي الَّذِينَ يَعْلَمُونَ وَالَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ ۰

من قال فلان اعلم منه صلی الله تعالی علیه وسلم فقد
عابه فحکمه حکم السابّ نسیم الریاض -

(۲۰) قول علم غیب نه سمی مګر کوم علم غیب چه ده ته د الهام په
ذریعه حاصل دے په هغے کښے ظاهراً باطناً په هیڅ طریقه
سره د هیڅ یو پیغمبر یا بنیادم یا د ملائکه په واسطه نه دے
حاصل الله تعالی بلا واسطه رسول اصالةً دے غیبو خبر کړے
دا هم کفر دے-

وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُطْلِعَكُمْ عَلَى الْغَيْبِ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ يَجْتَبِي
مِنْ رُّسُلِهِ مَنْ يَّشَاءُ ۔ عَالِمُ الْغَيْبِ فَلَا يُظْهِرُ عَلٰى
غَيْبِهِ أَحَدًا إِلَّا مَنِ ارْتَضٰى مِنْ رَّسُولٍ ۰

(۲۱) عمرو ته د رسول الله صلی الله علیه وسلم په واسطه سمعاً
یا عیناً یا الهاماً د بعض غیوبو علم قطعی الله تعالی ورکړے دے
دا احتمال خالص اسلام دے، نو محققین فقهاء دے لفظ
ویونکی ته کافر نه وائی اګر که دده د خبرے یو ویشت طرفونه وو
دے کښے شل د کفر وو، صرف یو د اسلام وو د احتیاط او نیک ګمان
کولو په سبب ئے دده خبره په دے پهلو باندے حمل کړی چه هغه
د اسلام طرفته دی، ترڅو پورے چه دا ثابت نه وی چه ده چرته

دکفر یو پهلو مراد کړے دے ، نو دا سے خبرو چه ملعونه دی ، دَ الله دَ تکذیب دی ، یا دَ محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم پهٔ شان کښې دَ ګستاخئ خبره دی هیڅ تاویل ئے ، هیڅ توجیه یکښې قبول نهٔ ده نو لا په دے به بیا هم دکفر حکم نهٔ دی لګیدلے او س نو بیا دے نه کفر نه وتیل کفر ته اسلام وئیل دی . او چه څوک کفر ته اسلام او وائی هغه کافر دے ، او س دے دَ شهاد او بزازیه ، او درر او بحر او نهر ، او فتاوی خیریه او مجمع الانهر ، او در مختار وغیره معتبر کتابونو نه وا و ریدل چه څوک دَ حضور صلی الله علیه وسلم پهٔ شان کښې کے ادکړی ، کافر دے ، او چه څوک ئے کفر کښې شک کوی ، هغه هم کافر دے ، مګر یهود منش خلق فقهاء کرامو باندے افتراګانے غلطے لګوی او دَ دوئ په خبرو کښې تغیر او تبدیلی راولی وَسَيَعْلَمُ الَّذِينَ ظَلَمُوا أَيَّ مُنقَلَبٍ يَنقَلِبُونَ . شرح فقه اکبر کښې دی .

قد ذکروا ان المسئلة المتعلقة بالکفر اذا کان لها تسع وتسعون احتمالا للکفر واحتمال واحد فی نفیه فالاولی للمفتی والقاضی ان یعمل بالاحتمال النافی .

فتاوی خلاصه او جامع الفصولین او محیط او فتاوی عالمګیری وغیره کښې دی .

اذا کانت فی المسئلة وجوه توجب التکفیر ووجه



واحد یمنع التکفیر فعلی المفتی والقاضی ان یمیل الی ذلک الوجه ولا یفتی بکفره تحسینا للظن بالمسلم ثم ان کانت نیة القائل الوجه الذی یمنع التکفیر فهو مسلم وان لم یکن لا ینفعه حمل المفتی کلامه علی وجه لا یوجب التکفیر

همدارنګه فتاوی بزازیه او بحر الرائق او مجمع الانهر او حدیقه ندیه وغیره کښې دی :

تاتارخانیه او بحر او سل الحسام او تنبیه الولاة وغیره کښې دی :-

لا یکفر بالمحتمل لان الکفر نهایة فی العقوبة فیستدعی نهایة فی الجنایة ومع الاحتمال لانهایة

بحر الرائق او تنویر الابصار او حدیقه ندیه او تنبیه الولاة او سل الحسام وغیره کښې دی :-

والذی تحرر انه لا یفتی بکفر مسلم امکن حمل کلامه علی محمل حسن الخ

او ګوره دَ یو سړی یو لفظ کښې څو احتماله دی نه دا چه دیو سړی په څو اقوالو کښې ، مګر یهودی دَ خبرو تحریف کوی -

## فائده جلیله

دوے تحقیق نه ظاهره شوه چه بعض فتاوی کښې لکه فتاوی قاضی خان

وغیره کښے چه په داسے سری باندے چه د الله او رسول پیا
گواهی باندے نکاح اوکړی یا او وائی چه ارواح د مشائخو بزرگانو
حاضر دی یا او وائی چه ملائکے په غیبو پوهیږی ملکه دا او وائی چه
ماته علم غیب حاصل دے، په دے قسم خلقو باندے د کفر حکم کړے
دے، لهٰذا دے نه مراد دغه صورت دے چه کفر توے ثابیږی.
لکه د علم غیب ذاتی دعوے کول وغیره دی، ورنه دے کښے یو
پریږده ډیر احتمالونه دی د اسلام. ځکه چه دلته د علم
غیب قطعی یقینی تصریح نشته او د علم اطلاق په ظن باندے
هر ځائے شائع او ذائع دے، نو د علم ظنی طرف چه هم
پیدا شی نو د یو ولیشت په ځائے باندے دوه څلویښت احتمالونه
را اوتلی چه دے سره لهٰذا ډیرو کفرونو نه بچ دے چه د غیب
ظنی دعوے کول کفر نه دے، بحر الرائق او رد المحتار کښے
دی :-

علم من مسائلهم هنا ان من استحل ما حرمه الله تعالیٰ
علی وجه الظن لا یکفر و انما یکفر اذا اعتقد الحرام حلالاً و نظیره
ما ذکره القرطبی فی شرح مسلم ان ظن الغیب جائز کظن المنجم
و الرمال بوقوع شیئ فی المستقبل بتجربة امر عادی فهو ظن
صادق و الممنوع ادعاء علم الغیب و الظاهر ان ادعاء ظن
الغیب حرام لا کفر بخلاف ادعاء العلم اهـ و زاد فی البحر الاتری



انهم قالوا فی نکاح المحرم لو ظن الحل لا یحد بالاجماع و یعزر
کما فی الظهیریة وغیرها و لم یقل احد انه یکفر و کذا فی
نظائره اهـ

نو ځکه به ممکنه شی چه علماء کرام د دے تصریحاتو با وجود
چه یو احتمال هم پکښے د کفر نافی وی نو چه بیا پکښے ډیر ډیر
احتمالات اسلامی موجود دی نو ځکه به ډیرے د کفر حکم او نکوی.
نو خامخا له دینه مراد دغه خاص احتمال د کفر دے. لکه د علم غیب
ذاتی دعوی کول وغیره شو. ورنه دا اقوال د دوی باطل او
آئمه کرامو د خپلو تصریحاتو نه به مخالف شی او په بچپله به
زائله شی او ختم به شی (یعنی اقوال د علماؤ) د دے تحقیق
جامع الفصولین او رد المحتار او حاشیه علامه نوح او منتقط
فتاوی حجة او تاتارخانیه او مجمع الانهر او حدیقه ندیه
او سل الحسام وغیره کتابونو کښے موجود دے. د رسائل علم
غیب د عباراتو نصوص لکه اللؤلؤ المکنون وغیره مطالعه کړی.
و بالله التوفیق دلته صرف د حدیقه ندیه شریف دا کلمات
شریفه بس دی.

جمیع ما وقع فی کتب الفتاوی من کلمات صرح المصنفون
فیها بالجزم بالکفر یکون الکفر فیها محمولاً علی ارادة قائلها
معنیً علل به الکفر و اذا لم تکن ارادة قائلها ذلک فلا

کفر اھ مختصراً

یعنے کتابونو د فتاوی کښے چه کوم الفاظو باندے حکم د کفر په یقین سره لګیدلے دے. د هغے نه مراد هغه صورت چه قائل ئے طرف د کفر مراد کړے وی، ورنه هو ځکه کفر نه دے.

## ضروری خبردارے

احتمال هغه معتبر دے چه د کوم ګنجائش وی په ښکاره او ظاهره خبره کښے به تاویل نشی اوریدے کیدلے مثلاً زید اووے چه خدایان دوه دی. دے کښے دا تاویل اوکړی چه لفظ خدائے په حذف د مضاف سره دے مراد ترے حکم د خدائے دے. یعنے قضا دوه وی. مبرم او معلق لکه الله جل جلاله قرآن عظیم کښے فرمائیلی دی: الا ان یاتی الله: لے امر الله عمرو اووائی چه د خدائے رسول یم، دے کښے دا تاویل جوړ کړی چه له دے نه لغوی معنے زما مراد دے یعنے خدائے پاک د دۀ بدن کښے روح دوه اولیږو دا سے تاویلونه هیڅ کله قبول نه دی او اوریدے کیږی به نه. شفا شریف کښے دی:-

ادعاءه التاویل فی لفظ صریح لایقبل په صریح خبره



کښے تاویل نشی اوریدے کیدے. شرح شفا قاری کښے دی: هو مردود عند القواعد الشرعیه دا سے دعوی شریعت کښے مردوده. نسیم الریاض کښے دی:-

لا یلتفت لمثله ویعد هذیانا. دے تاویلونو ته به نشی کتلے او دا به هذیان شمارلی. فتاوی خلاصه، او فصول عمادیه او جامع الفصولین او فتاوی هندیه وغیره کښے دی: واللفظ للعمادی قال انا رسول الله او قال بالفارسیة من پیغمبرم. یرید به من پیغام می برم یکفر یعنے که چرے څوک دا اووائی چه د خدائے رسول یم یا فارسی (وغیره) کښے ووائی: چه زۀ پیغمبر یم او اراده ئے دا وی چه زۀ پیغام رسوم قاصد یم. نو دے کافر کیږی. دا تاویل ئے قبول نۀ دے. فاحفظ یاد ئے کړه.

څلورم مکر انکار دے:- یعنے چه چا د دے بدګویو ګستاخانو کتابونه وی لوستلی هغوی دوه ئی غلطے خبرے اوائے نو دوئی صفا انکار اوکړی چه دا خبرے هغوئی نۀ دی کړے، او چه د دوئی چهاپ شوی کتابونه تحریرونه اوښئی، نو که د علم خاوند وی. ورنو پوزه په تروه کړی او مخ به واړوی لاړ به شی. یا به په ستر ګو کښے سترګے واچوی او کمال بے حیائی د وجے نه به صفا اووائی چه

که دا خبره رښتیا هم وی نو زه کوم خوا لاړ شم او کوم چرې
بې علمه وو نو صفا وائي چه د دې عبارتونو دا مطلب نه دے
بلاخره مطلب دے و دے. ولې دے په کېدو کښې خبرې
کوی. نو د دوی جواب د پاره دا آیت کافی دے :-

يَحْلِفُوْنَ بِاللّٰهِ مَا قَالُوْا وَلَقَدْ قَالُوْا كَلِمَةَ الْكُفْرِ
وَكَفَرُوْا بَعْدَ اِسْلَامِهِمْ ۔

دوی په خدائے قسمونه خوری چه دا خبرې یې نه
دی کړی او خامخا په تحقیق سره دوی کلمه د کفر
ویلے ده او کافر شوی دی، پس د اسلام نه اوړېدونکو ع
ہوتی آئی ہے کہ انکار کیا کرتے ہیں ۔ یعنی
دا شوی دی انکار به څه او کړی ۔

د دې خلقو هغه کتابونه[1] چه … د ډېرو مدتونو
دوی په خپلو ژوندیو کښې چهاپ کړی دی او بیا یې شائع کړی دی.
په هغه کښې بعض د دې[2] دوه څل چهاپ شوی دی، د ډېرو مدتونو
علماء اهل سنت د هغې ردونه چهاپ کړل او د هغوی غلطې
خبرې یې اونیولې. هغه فتوی[3] چه هغه کښې صفا صفا الله تعالیٰ

[1] یعنې براهین قاطعه او حفظ الایمان او تحذیر الناس او کتب قادیانی وغیره
[2] لکه براهین قاطعه او حفظ الایمان
[3] د رشید احمد گنګوهی فتوی



ته دروغژن ویلی دی او د هغې اصل مهری او دستخطی اوس
پورې محفوظ دے او د هغې فوټوګانې هم ورپسې دے چه په
هغې کښې یو فوټو علماء حرمین شریفین ته ښودلو د پاره سره
د نورو کتابونو چه کښلونه ډک ورځ دی مدینه طیبه کښې
هم موجود دی. د دې تکذیب خدا ناپاکے فتوے اتلس ۱۸
کاله اوشو، د ربیع الآخر سنه ۱۳۰۸ھ کښې رساله صیانة الناس
سره مطبع حدیقة العلوم میرټهـ کښې سره د رد نه شائع شوه بیا
په سنه ۱۳۱۸ھ کښې مطبع گلزار حسنی بمبئی کښې د دې یو بل تفصیلی
رد چهاپ شو. بیا سنه ۱۳۲۰ھ کښې پټنه عظیم آباد مطبع تحفه
حنفیه کښې د دې یو بل قاهر رد چهاپ شو، او فتوی د رکوونکے
جمادی الآخره سنه ۱۳۲۳ھ کښې مړ شو او تر مرګه پورې چپ
پاتې شو نه یې دا اووے چه دا زما فتوی نه ده حالانکه د
خپلې چهاپ کړی شوی کتابونو کښې فتوی نه انکار آسان کار نه وو نو یې
دا اوښودل چه د دې دا مطلب نه دے کوم چه علماء اهل سنت
مراد کوی بلکه زما مطلب دا دے نه د صریح کفر د نسبت
کولو آسان کار وو. په دې خبره د څه غور فکر او التفات
اوکړو. د زید نه که چرې د ده په ژوندګۍ او تندرستۍ کښې
مهری ښکاره فتوی نقل شی او هغه قطعاً یقیناً ظاهر کفر وو.
او په کلونو کلونو د هغې اشاعت کیږی. خلق د هغې ردونه

چهاپ کوی. زید دَ هغه فتوی په وجه کافر بنکاره کوی. زید
دَ هغه نه پس پنځلس کاله ژوندے دی او دا هر څهٔ وینی
اوری. او دَ دے فتوی له خپل طرف نه د نسبت کولو
انکار اونکړی بلکه خاموش ناست دی ساینوے او سپین ږی
تر دے چه ساده ئے او ځی، ولے څوک عقل مند گمان کولے
شی چه د دے نسبت نه دَ هغه انکار وو یا د هغه بل مطلب
وو او په دوئ کښے چه اوس کوم ژوندی دی او سه پورے
خاموشه دی نهٔ دَ خپلو چهاپ شوو کتابونو نه منکریدے شی
نه دَ خپلو کنځلو او غلط الفاظو څه مطلب جوړولے شی -
سنه ۱۳۲۰ھ کښے د دے قولو کفر یا تو یو ځائے مجموعی
طور سره ردّ شائع شو، بیا د دے کنځلو متعلق دَ مسلمانانو
مشرانو څهٔ علمی سوالات په دوئ کښے د دوئ مشر له
ویوړل، دَ سوالونو په لیدو سره چه کوم حالت د بحث پیدا
شو، د لیدونکو خلقو د هغه تپوس اوکړو، مګر د هغه وخته
پورے بیائے هم دَ دغے تحریراتو نه انکار اونکړو او نه ئے
په څهٔ مطلب جوړولو قدرت بیاموندو بلکه چه وئیلے ئو دائے
اووئیل چه زهٔ بحث مباحثے له نهٔ یم راغلے نه مباحثه غوارم، زهٔ دے فن
کښے جاهل یم او زما استاذان هم جاهلان دی که ثابته هم شی نو
زهٔ به دا خبره اوکړم اُو څم به -



د هغه سوالونو او د دے واقعے تفصیلی ذکر چه بیا کله په
جمادی الاخری سنه ۱۳۲۳ھ کښے چهاپ شو او د دغے مشر او د دهٔ
د تابعدارانو په لاس کښے ورکړے شو بیا هم دَ هغه خُلو دم کال
دے چه دَ هغه څه جواب یا انکار یا څهٔ مطلب ئے بیان نکړو.
صدائے برنخاست. د دے قولو حالاتو نه پس د دوئ
انکار دی مکر داسے دے. لکه چه او پیلے شی چه د الله او د رسول
په شان کښے گستاخی کوونکی او بدگوئی والا خلق په دنیا کښے
پیدا شوی نه دی، دا قول بناوټ دے. د دے علاج څه
کیدے شی، الله دِ حیا اوکړی -
پنځم مکر :- چه کله دے خلقو نه څهٔ او نه شی او چرته
د تحقیق د لاره په نظر ورشی او د دے توفیق هم الله واحد
قهار نه ورکوی چه توبه اوکړی، او چه د الله او دَ رسول
صلی الله علیه وسلم په شان کښے ئے گستاخی کړیده او کنځل
ئے کړی دی دَ هغه نه واپس شی چه څنګه دوئ دا کنځل کړی
دی، نو د دے نه دَ واپس کیدو دے هم هغه شان اعلان اوکړی
ځکه چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائی :-
اذا عملت سیئۃ فاحدث عندها توبۃ السر بالسر
والعلانیۃ بالعلانیۃ چه کله بدی اوکړے نو فوراً تر ے
واپس شه او توبه کړه دَ پټ کار نه په پټه او دَ بنکاره

او فرمائي :-

فَنَجْعَلْ لَّعْنَتَ اللّٰهِ عَلَى الْكٰذِبِيْنَ ۝ (سورة العمران پ ۳ ع ۱۴)

مونږه دَ الله تعالی لعنت وایو په دروغژنو باندے :-

مسلمانانو ! دا دے مکر شدید او سخت فریب او کمزور چال لیمسه څه مشکل کار نه دے، دا دے خلقو نه ثبوت او غواړئ دَ ، و پیلے دے ، دیلے دے څوک وائی۔ نو دا دے څه ثبوت خوادوایه کند ، په کوم کتاب، کوم رسالے کوم پرچے، کوم فتوی کښے ئے ډیلے دے، بنه بنه که ثبوت لرے او ښیه او دوی ئے نشی ښودلے او الله تعالی بنه پوهیږی چه نشي ښودلے. نو او گوره قرآن عظیم ستاسو د دروغژن کیدو گواهی ... کړی۔

مسلمانانو

## ستاسو ربّ ذوالجلال فرمائي

فَاِذْ لَمْ يَأْتُوْا بِالشُّهَدَآءِ فَاُولٰٓئِكَ عِنْدَ اللّٰهِ هُمُ الْكٰذِبُوْنَ ۝ (سورة النور پ ۱۸ ع ۲)

کله چه دوی ثبوت رانه وړی نو دَ الله په نزد دروغژن دی۔

مسلمانانو ! ازمولے شوے به څه وازمولے۔ ډیر دا ئے



شوی دی چه دے خلقو په ډیر زور شور سره دعوے کړیدی او چه کله یو مسلمان ترے ثبوت او غواړی نو یکدم مخ او گرځوی او شا کړی، بیا په مخ نه بناڅي مگر حیا دومره ده چه کوم ربټ (غلط اوګړ) و دوی په مخ لگیدلے دے هغه نه پریږدی او پریږدی ئے، لیکن مرکیدو لکے سرے څه نه کوی او س خدائے او رسول ته کنځل کوونکو په کفر باندے یو پرده هم نه ده پاتے شوے صرف یوه آخری حیله پاتے ده۔ دوی کوشش کوی چه په څه طریقے باندے د عوامو په ذهن کښے جمع شی، او د خلقو خیالات ئے قبول کړی چه علماء اهل سنت داسے خلق دی چه بغیر د څه وجے نه خلقو ته کافر وائی هغه شان دے کنځلو په باره کښے او وے۔ مسلمانانو ! دا دے افتراکوونکو سره هیڅ ثبوت نشته، دوی سره دا ثبوت د کوم ځائے نه راغے، د دروغژنو به څه ثبوت وی۔ د اَنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِيْ كَيْدَ الْخَآئِنِيْنَ ۝ د دوی باطل دعوے داسے باطله شوه لکه چه

## ستاسو خدائے تعالیٰ فرمائی :

قُلْ هَاتُوْا بُرْهَانَكُمْ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ۝

(سوره النمل ع ۱ پ ۲)

راوړئ چل دلیل که تاسو رښتینی یئ۔

د دے نه زیات مونږ ته حاجت نهٔ وو مګر د الله په فضل مونږه د دوئ د دروغو داسے ښکاره ثبوت ورکړو چه هر مسلمان باندے د دوئ دروغژن کیدل د نمر نه زیات ظاهر شول، ثبوت هم د الله په فضل تحریری دے، هغه هم چهاپ شو هغه هم صرف نن د پاره نه بلکه د کلونو کلونو د پاره چه د کومو خبرو تکفیر تهمت دے په علماء اهل سنت باندے ګلولے دے چه په هغې کښے زیات ګنجائش دوئ ته ملا وېږی نو اسماعیل دهلوی کښے چه بے شک علماء اهل سنت د دهٔ په خبرو کښے زیاتے خبرے د کفر ثابتے کړی دی او بیا ئے شائع کړی هم دی، د دے ثبوت له تاسو سبحان السبوح عن عیب کذب مقبوح اوګورئ چه اول ځل ۱۳۰۹ه کښے لکهنو مطبع انوار محمدی کښے چهاپ شو چه هغې کښے په مضبوطو او قاهرو دلیلونو سره په دهلوی مذکور او د دهٔ په تابعدارانو باندے په پنځه اویا وجو سره لزوم د کفر ثابت کړے دے چه په ص۹۰ باندے دا آخری حکم لیکلے دے چه محتاط علماء دوئ ته کافر نهٔ وائی او دا صحیح ده وهو الجواب وبه یفتی وعلیه الفتوی وهو المذهب وعلیه الاعتماد وفیه السلامة وفیه السداد۔ یعنے دا جواب دے او په دے باندے فتوی ده او په دے فتوی کیږی او دا زمونږه



مذهب دے او په دے اعتماد دے او دے کښے سلامتیا ده او هم په دے کښے استقامت دے۔

دویم :۔ الکوکبة الشهابیه فی کفریات ابی الوهابیه اوګورئ چه خاص د اسماعیل دهلوی او د دهٔ د تابعدارو په رد کښے تصنیف شوے دے، او اول ځل په شعبان ۱۳۱۲ه کښے عظیم آباد مطبع تحفه حنیفیه کښے چهاپ شو چه هغې د قرآن مجید او د احادیثو صحیحو او تصریحات آئمه په دلائلو سره په حواله د معتبر کتابونو باندے په دهٔ باندے په اویا بلکه د دے نه زیاتو وجوهو سره لزوم د کفر ثابت کړے دے او بالآخر ئے په ص۶۲ کښے لیکلی دی چه زمونږه په معاملا احتیاط د پاره) الکفار (کافر کول) الخ نه ذٔبه بنده سائل بنهٔ غوره او مناسب دی۔

والله سبحانه وتعالیٰ اعلم

دریم :۔ سل السیوف الهندیه علی کفریات بابا النجدیه اوګورئ چه په سنه ۱۳۱۶ه کښے عظیم آباد کښے چهاپ شو، دے کښے د اسماعیل دهلوی د هغه عقیدو اظهار کړے دے، چه بیائے پرے په ډیرو زبردستو وجوهو سره د کفر لزوم ثبوت اوکړو او بو ویشت یا دوه ویشت صفحو کښے او لیکلے شو۔ دا حکم د فقه متعلق وو چه د هغهٔ د کم عقلئ جوابونه وو، لیکن د

الله تعالیٰ بے شمار رحمتونه دی او بے حده برکتونه زمونږ په
علمائے کرامو باندے چه دا هر څه دینی او دوے ډیر نه
په هره هره خبره باندے د رښتینی مسلمانانو په حق کښے د کفر
او شرک حکمونه اوری دوے هر څه سره نه غضب او غصه داولی
نه د احتیاط لمن لاس نه پریږدی او نه بدل کښے تو بے انتقام
اخلی، او سه پورے دوی ۷۰ تحقیق کوی چه د لزوم او التزام
په مینځ کښے فرق دے د اقوالو د کفر کلمه کیول جدا خبره ده، او
قائل ئے کافر منل جدا۔ مونږه احتیاط ډیر کوو، خاموش
به کوو چه څو پورے کمزوری نه کمزورے احتمال ملاویږی
نو د کفر حکم جاری کولو نه به ډیریږو اه مختصرا

خلورم : ازالة العار بحجر الکرائم عن کلاب النار
او گورئ چه اول ځل سنه ۱۳۱۷ھ کښے عظیم آباد کښے چهاپ
شو، دے کښے لس صفحے اوبیلے شوے، مونږه دے باب کښے
قول د متکلمینو اختیار وو په دے کښے چه څوک د دین له
ضروری کارنه منکر نه وی او نه یو منکر ته مسلمان وائی،
نو هغه ته کافر نه وایو۔

پنځم : اسماعیل دهلوی له هم د پوهیدلو موقع ورکړی
دغه گستاخان او کنځل مار خلق چه په کفرے او س نتوی ورکړه
ده چه څو پورے دے بنکاره کنځلو باندے ورته اطلاع



نه وه د امکان کذب په سبب ئے پرے اته اویا وجو باندے
لزوم د کفر ثابت کړو او د سبحن السبوح په آخر کښے صنه ۸ طبع
اول باندے دا سے اولیکل چه حاشا لله حاشا لله هزار هزار
ځله حاشا لله زه هرگز تکفیر نه خوښوم، دا مقتدیان یعنے
دا نوی مدعیان خو اوسه پورے مسلمانان گڼړم اگر که د دوی
په بدعت او ضلالت گمراهئ کښے شک نشته او د دے چلے
مشر اسماعیل دهلوی په کفر هم حکم نه کوم، د دے وجے نه
مونږه حضور صلی الله علیه وسلم د تکفیر نه منع کړی یو۔ تر
هغه پورے چه کفرے د نمر په شان ظاهر نه وی او د اسلام
د پاره څه ضعیف نه ضعیف احتمال هم پاتے نشی فان الاسلام
یعلو ولا یعلیٰ علیه۔

مسلمانانو! مسلمانانو! تاسو ته خپل دین او ورځ د قیامت
او د الله پاک په دربار کښے د پیشئ یاد ورکوم او تپوس
ترے کوم چه د خدائے پاک د یو بنده طریقه تکفیر په سخت
احتیاط سره دا ښکاره تصریحات په دے "تکفیر" د تکفیر افتراء
څومره بے حیائی، څومره ظلم، ظلم څومره پلیت او ناپاکه خبره ده گکو
محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم چه
فرمائی بالکل حق فرمائی اذا لم تستحی فاصنع ما شئت چه کله د
حیا پاتے نشی نو چه کوے بیا کوه : ع بے حیا باش و هر چه خواهی کن

مسلمانانو! په ښکاره او ظاهر قاهر عبارات ستاسو
مخکښې دي چه دا چهاپ شول او لس لس کاله د بعضې او بعضې
او د تصنیف نو لس کاله شوي دي، او د دې کنځلو تکفیر
خو اوس شپږ کاله او شول یعنې سنه ۱۳۲۰ھ نه شوې دې چه
څه وخت المعتمد المستند چهاپ شو دا عبارتونه په غور
او گوره او د الله او د رسول دېره تر مخکښې کړه او انصاف
او کړه دا عبارتونه صرف دې افترا تلونکو د افترا رد نه کوي
بلکه صفا صفا شهادت ورکوي بلکه دې لوئ احتیاط کوونکي
صرف دې کنځلو کوونکو ته کافر نه دي ویلي چه څو پورې
قطعي یقیني واضح ښکاره جلي طور باندې د دوئ کفر نور نه
زیات نه وو ظاهر شوې چه هغې کښې اصلاً اصلاً هرگز
هرگز گنجائش څه تاویل نه کیدو، نو آخر دې د الله بنده
دغه وې چه دې مشرانو باندې په اویا اویا وجو سره لزوم
د کفر ثابت کړو او دا داځې چه مونږ په رسول الله صلی الله علیه
وسلم ته د لا اله الا الله ویونکي د تکفیر نه منع کړې یو چه
څو پورې د وجه د کفر د نمر په شان زیاته روښانه شوې
ده او حکم د اسلام د پاره کمزورې نه کمزورې وجه هم نه
وه پاتې شوې، دا د الله بنده خو دغه دې چه په خپله د
دغې کنځلو کوونکو نسبت (چه څو پورې د دغې کنځلو یقیني



اطلاع نه شوه) په اته او یا وجو سره په دوئ د فقهاء کرامو په حکم
د کفر د لزوم ثبوت ورکړو او دا ئې لیکلي دي چه هزار هزار ځله
حاشا لله زه هرگز د دوئ کافر کول خوښ نه گڼړم ولې د دوئ
زما څه تعلق وو چه اوس پکښې راغې یا د دوئ سره زما جایداد
یا څه مال کښې شرکت نه وو اوس پیدا شو، حاشا لله د مسلمانانو
تعلق د محبت او دښمنۍ صرف محبت او دښمنۍ د الله او د
رسول ده چه څو پورې دې کنځل مارونه د الله او د رسول
په حق کښې د کنځلو[1] ظاهر ویل نه وو شوي یا د الله او د رسول په
جناب کښې ئې د دوئ کنځلې لیدلې او ریدلې نه دې، د هغې
وخت پورې د دوئ د کلمې ویلو لحاظ وو، د غایت احتیاط نه
ئې کار اخستلو حتی که چه د فقهاء کرامو د حکم مطابق په دوئ
قسم قسم حکم لازم وو مگر احتیاطاً ئې دغه کفر غوره نه کړو او
د متکلمینو عظامو مسلک ئې اختیار کړو چه کله صفا صریح انکار
د دین د ضروریاتو نه او د رب العالمین او د حضور سید المرسلین

---

[1] لکه اشرف علي تهانوي صاحب چه د محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم په
جناب کښې ئې دا سې منځې کنځلې په ۱۳۱۹ھ کښې چهاپ کړې وې دې نه مخکښې
ئې خپل سني والې ظاهر وو بلکه یو وخت هغه وو چه مجلس میلاد مبارک کښې او
دا هل اسلام په قیام کښې به شریکیدلو۔

ملن خوک پریږدی او د زید عمرو ملن اونیسی نو دے به هیڅ کله کامیاب نشی. باقی هدایت دَ الله اختیار دے. خبره بحمد الله دَ هر سمجهدار مسلمان په نزد ښکاره ده. مګر زمونږه دَ عوامو رونړو دَ خاطرو دَ ډهورولو ضرورت وی. دهرونه دَ علماء حرمین طیبین نه زیارت په بل ځائے کښے نشته ځکه بله وی چه دغه ځائے نه ددین آغاز شوے دے او دَ احادیثو صحیحه په حکم سره به هیڅ کله دغه ځایونو کښے دَ شیطان دور او دوره نه وی، ددے وجے نه دَ خپلو عامو رونړو دَ ډیاتے تسلی دَ پاره دغه فتوی مکه معظمه او مدینه طیبه کښے علماء کرامو او مفتیان عظامو ته پیش خدمت شوے چه هغوی خوبئ او ښے طریقے او ددین دجوش سره دوی دغه فتوی تبوله کړه او دَ دین دے ستنو دُ هغه تصدیقونه اوکړل. بحمد الله کتاب مستطاب حسام الحرمین علی منحر الکفر والمین کښے دَ عزتمند ورونړو پیش نظر او دَ هرے صفحے مقابل کښے آسانه اردو سره ترجمه شوے ده. ښکاره احکام او تصدیقات اعلام جلوه کړ.

ابی اسلامی رونړو ته دَ حق قبلولو توفیق ورکړے او دَ ضد نفسانیت او ستا او ستا دَ حبیب مقابله کونکی دَ زید او عمرو دَ حمایت نه اوساتے. دَ پاک ذات محمد رسول الله صلی الله علیه په مخ او برکت باندے



آمین ۱۔ آمین ۱۔ آمین ۱

والحمد لله رب العلمین وافضل الصلٰوة واکمل السلام علی سیدنا محمد صلی الله علیه وآله واصحابه وحزبه اجمعین ط آمین

---

تمت بالخیر

چه شو ختم په کوم ورځ تمهید ایمان
تاریخ اولسم وو زما دوره دَ رمضان
دا کتاب چه کړ اوری یا ئے نوری
وی دِ زما په حق کښے هر وخت دعاخوان
زه خدمت ددے ښکلی مذهب کړم
خدائے دِ نصیب کړی په آخر زما ایمان

زهٔ شاهد خورشید احمد شکر ګزار یم
چه طاقت دَ ترجمے راکړو سبحان

دکتاب نوم ـــــــــ تمهید ایمان

مؤلف ـــــــــ امام احمد رضا قادری بریلوی

ترجمه کوونکے ـــــــــ خورشید احمد شاهد القادری افغانی

صفحے ـــــــــ ۱۲۸

مطبع ـــــــــ الحمد للہ

خوږونکی ـــــــــ محفوظ احمد قادری رضوی

اوّل وار ـــــــــ ۱۴۱۹ھ

هدیه ـــــــــ ۱۵/ روپے

تعداد ـــــــــ دوهزار

نوریه رضویه پبلشنگ کمپنی

بکار شید روڈ • بلال گنج لاہور

# ہماری مطبوعات

| کتاب | قیمت |
| --- | --- |
| اشعۃ اللمعات فارسی — | ۸۵۰ |
| مدارج نبوت فارسی — | ۴۰۰ |
| معارج نبوت فارسی — | ۳۵۰ |
| فتوح الغیب مع شرح فارسی — | ۱۵۰ |
| اخبار الاخیار مع مکتوبات فارسی — | ۱۵۰ |
| شرح سفر سعادت فارسی — | ۱۶۰ |
| شمائل شریف فارسی — | ۷۵ |
| عینی شرح کنز الدقائق عربی — | ۴۲۵ |
| جامع الغموض شرح کافیہ عربی | ۱۷۰ |
| شرح الصدور فی احوال الموتی فی القبور — | ۷۵ |
| مکاشفۃ القلوب ترجمہ اردو — | ۱۲۵ |
| گلستان شریعت — | ۶۰ |
| سامان بخشش — | ۲۴ |
| مجموعہ نعت اول، دوم مکمل | ۱۰۰ |
| ہشت بہشت | ۲۰۰ |
| نظام شریعت | ۵۰ |
| منتخب حدیثیں | ۵۰ |
| ضرورت تقلید | ۲۴ |
| شمع شبستان رضا بڑا سائز | ۱۲۰ |
| شمع شبستان رضا چھوٹا سائز | ۱۰۰ |
| شمع شبستان رضا لیمینیشن جلد | ۹۰ |
| الوظیفۃ الکریمہ | ۵ |
| جماعت اسلامی | ۸ |
| نعت حبیب | ۲۱ |
| نقش وفا | ۱۵ |
| بُرا نہ کہو | ۱۲ |

ملنے کا پتہ :- **نوریہ رضویہ پبلشنگ کمپنی**

کچا رشید روڈ بلال گنج لاہور